
د شپې ویښې
د کتر امظهری اثر
پښتو ټولنه ۱۳۵۶




# ژړاګانې او خندانه

د

## عبدالمظهري

اثر

پښتو ټولنه

۱۳۵۶

خاورې خاورې به په خاورو کې پرته یم
خو یادګار به مې وي پاتې د زړه وینې

کبرا مظهري

د زندګۍ ماشوم ویده دی د سرو وینو په حرم کې
که غوټۍ شونډې سپړلې دي په غېږه د عدم کې

کبرا مظهري

# اهداء

زه د خپل زړه هغه سرې وینې چې د پښتو او پښتونولی احساساتو او د غیرت او وطن دوستی خواصو ورته د سرخروئي او ښایست سور ګلابی رنګ ورکړی دی ، هغو ته اهدا کوم چې د بشر او بشر دوستی سره مینه لري . کبرا مظهري

4

# لړ

| مخ | سرلیک | گڼه |
|---|---|---|
| ٦٢ | زماجهان | ٣١ |
| ٦٣ | ویرانه‌جزیره | ٣٢ |
| ٦٥ | دوخت‌ایجاب | ٣٣ |
| ٦٧ | پښتنوخویندووروڼوته | ٣٤ |
| ٦٩ | ښاري‌ژوند | ٣٥ |
| ٧٠ | برابري | ٣٦ |
| ٧٢ | دسکر و ټو ټخا | ٣٧ |
| ٧٣ | هتکړی | ٣٨ |
| ٧٤ | خپلی مورته | ٣٩ |
| ٧٥ | هـــوس | ٤٠ |
| ٧٦ | دغریب آواز | ٤١ |
| ٧٨ | خیالی‌دلدارته | ٤٢ |
| ٨٠ | دشاعرتکل | ٤٣ |
| ٨١ | سینه‌په‌دي‌ښارکې | ٤٤ |
| ٨٣ | شهیده‌پیغله | ٤٥ |
| ٨٥ | ستایاد | ٤٦ |
| ٨٦ | اندیښنی | ٤٧ |
| ٨٧ | دښکلاسترګی | ٤٨ |
| ٩٠ | ساقی ته | ٤٩ |

ac

یادونه: ګران لوستونکی به دنوړو غلطیو په لړ کی چی پیدا شوی‌دی یو به هم په شلم سرلیک کې د شهیدی پیغلې په ځای سپیڅلی پیغله و وا یی . په در ناوی

ad.

# ریښتونې پښتنه شاعره

شاعر د نورو خلکو نه زیات حساس وي او خپل احساسات او تأثرات په داسې الفاظو کې څرګندولی شي – چې څوک یې لولي یا اوري نو فکر او شعور وینه او جذبات یې چیړلی، پاروليِ او لمبه کولی شي .

ریښتونی شاعر چه لکه څنګه د تازه غوټۍ په شونډو د نوي ژوند د امیدونو، تلوسو، ولولو، مستۍ او حسن مسکا محسوسولی شي . همدغه شان د زیړي سپیري پاڼې په ریژیدونکی سخ د مایوسۍ حسرت نیمګړی ارمانونو او سړو ارزوګانو جنازې هم .

د شاعر زړه یوه تورهکتهنه وي – چه کنی په حجري دورکښې چې یې کوم نقش قبول کړی وي په اتوسی دورکی به هم هغه نقش د نیاته وړاندې کوي نه _

د شاعر زړه د فطرت د هنر یوه داسې هنداره ده چې د هر وخت او هر عصر هر قسم نوي ترقي او تازه

نقش دهغه نقش داصلی ماهیت‌نه زیات ژوندي او
تازه دنیاته پیش کولی شی .
دشاعرزړه یوپلاستیکی گل هم نه دی ـ چه گنی ددنیا کوم گوټ
ته چې ځی نودهغه کارخانې رنگ‌به دځان‌سره وړي کومه
کارخانه کی چه‌دي‌جوړ او رنگ شوي‌دي ــ بلکه
دطبعی او انسانی ژوندیو داسی حساس مظهر دی‌چی
په کومه خاوره کښی راټوکیږي او کوم باد
(شمال) کی لوئیږي نو دهغه ټول خاصیتونه او
تقاضی په ځان کښی رانغاړي او بیایی په خپل
مخصوص نوي او ښکلی رنگ‌کی هرچاته ښکاره
کوي .
دشاعردزړه غوټی په‌مسکا غوړیږي اوتازه کیږي
او په ژړامړ اوي کیږي او ریژیږي ــ خو په
مسکا کښی و رته فرق او امتیاز نه ښکاري ــ
دانسان دخولی مسکا مسکاده ــ او ژړا ژړاده ــ
که هغه انسان خپل وي‌که پردي ،توروي که
سپین دشمال‌وي‌که د جنوب .
زه‌چه‌خو سره دکبر أ مظهري‌دشاعري مطالعه کوم
نو د یو ر پښتو نی شاعر د اټول صفتونه پکښې

وينم — نوځکه زهو يلې شم چې کبراپه ټولو معنو شاعره ده او ريښتوني شاعره ده — دننني دو رښتېنو کښې که کو زه پښتو نخواه کښې سيده بشرى بيگم ( س ب ب ) ده نو بره پښتنو کښې سيده کبرا ( مظهري ) ده .

زما ددې مطالعې او راي سرهسره که تاسو اول ددې شاعرى دايو څو الفاظ چې دخپل شعر په هکله يې ليکلي دي او ددې کتاب پهسر کښې يې د«اهدا» پهنامه لوستو نکو ته وړاندې کړيدي او لولیء :

«زه دخپل زړه هغه سرې وينې چې دپښتو او پښتو نولی احساساتو او دغيرت او وطن دوستې خواصو وړته دسر خرويې او ښائيست سور ګلابي رنګ ورکړي دي هغو ته اهداء کوم چې دبشر او بشردوستې سره مينه لري » او بيا ددې شاعري د اشعارو دا مجموعه او په دې کښې دالاند ينې نظمونه او اشعار تاسو ځما دمطالعې رنړا کښې او کوري — نو ځما ددې راي سره به تل اتفاق کوي چې کبرا ريښتوني پښتنه شاعره ده او لیې دانظمونه — تاسو ته وړاندې کوم :— زما جهان ، دوخت ايجاب، پښتنو خو يندوورونوته، برابري، پيغام.

ج ١٢٥

پەدیلږ کښې چې دکبرا پښتنې محیط ( ساحول )
تەاو کتې‌شې‌ددي سحیط‌تاریخې او عنعنوي‌افتخارات
غیرت او شجاعت نظر کښې او نیول شې او بیاددي
شاعرې باندې غوروشې نو هرخوك چې ستر کې
لري‌هغه بەاو وینې‌چې کبرادخپلې خاوري د خپل
تاریخ او خپل محیط‌صادقه شاعره لورده— ځکه
چې‌ددي دشاعرې‌روح‌پښتو ،پښتنولي، وطن دوستي
غیرت اوسلې ازادې‌ده— لکه دانظمونه یې :
رحمان و ایې ،خپلو اکی‌تەخطاب، دوطن‌زلمی ته،
ابدالی زوراوقوت شه ، د دریا خان په
و یاږ، استقلال ، افغان زلمی ته .نن په دي
پښتنې د نیا کښې په هر وطن دوست او
بیدار زړه دتپو لو نەلوي زخم د پښتنو د بیلتون
او تیت پرك کیدو دي — تاسو دکبرادي اشعارو
تەاو گوري‌دار پښتو نی شاعره دخپلې پښتو اوغیرت
پەتقاضو ددي زخم دردځنگەپەشدت‌سره‌محسوسوي
او دسلې وحدت دپارەخوسره پەدرد،جو ش‌غیرت
او زخمې جذباتو دوطن‌غرونه، دري، سیدانونه
سیندونه اولوړي ژوري رالږزولی او ددوي په

لمنو کبنې پر تو، خو ر و و رو بخر و نه يو سو رسيلاب
جو ړو ل غو اړي —

څه که لر دي او که بر دي و اره يو دي
ديوه ز ړ گی نه بيلی څو قطر ي د ي
له امو نه تر جيلمه پښتو ن يو د ي
يو يې کور دي او شر يکی هديري دي
کبرا او باسه بنگړي له دوا ړو لاسو
چه څو انانو په لاس کړي او س کجري دي

* * *

څو چه د وحدت لاسو نه يو نه کړي
نه به شی اشنادلو ړ شو کت سر ه

* * *

جو ړه دو حدت کړ ه سمه لار ځانته
شاړي د وطن د کړ ه گلز ار ځانته
غرونه د وطن په لړ ز ه ر او له
و گټه ژ و ندون د افتخا ر ځانته

د کبرا عصر او محيط ته د ماضي نه يو بل دردناك او
افسوسناك اړخ راپاتی د ي چی بنځی د بشري
حقو قو نه محرو مې دي او جامعه کبنې دوي ته هغه

مقام نه‌و ر کولی کیږي چې دوي ته یې اسمانی کتابونه
بشري قانون او انسانی شرافت و ر کوي — دي
نظم زمونږ دمعاشري په‌لمنه ډیر دبدناسی داغونه
او زمونږ ملی ژوند کښې ډیری ستونځی او
محرومیتونه پیدا کړي دي — هیڅ انسانی ضمیر
د ښځوسره داسلوك نشي برداشت کولی — او
هیڅ داسی زړه‌چې د اولس د اجتماعی ژوند
او خوشحالی ارمان لري داظلم نشي زغملی —
کبراخپله د د غه مظلومی طبقی سره تعلق لري
او زمونږ دد رد سندو او محرومو خویندو میندو
او لونړو تپول محرومیتونه او دردونه په‌مستقیم
ډول محسوسوي—ددي شاعري زړه‌په دي تریخ
احساس زخمی زخمی دي ددي شاعري ډیر په شدت سره ددي
ظلم په‌ضد داحتجاج او مبارزي نه ډکه ده —کبرا په
ډیرو اشعارو کښې دا کوشش کړیدي چې یو
خو اخپلی خویندي رابیداري او خپل انسانی
مقام او خپلو حقوقو ته متوجه کړي او بل
خو اپلاران او رونړه پوه او اماده کړي چې ددي ظلم
نه لاس و اخلی خو رته وایی :

د اجتماع سمون په تاشی ته مسئوله بنکاری

ځان سنورکړه نور په ځان باندي ستم مکوه

اوسپيڅلي پيغله— نوسی نظم کښی چیدپيغلیدژوند

دردونه‌بيانوي يوشعرکښی داسی وايې:

زما د ځوان احساس سپيڅلي پيغله

لاړله گورته ارمانونو سره

داجتماع او بشری‌علوسو پوهان وايی اونن په

عملی ډول دنياته ثابته شوه‌چی دانسانی جامعی

داټولی بدبختی چی «ايدياليست» شاعران اوفلسفيان

او ددوي سرپرستان تری داولس توجه دجام او

شرابو په‌قصو کښی ددرو غو دمينی پ‌ه‌سندرو

او افسانو کی او دخيال‌او وهم په‌منطق اوسفکورو

کښی بل‌لوري ته گرځوی‌داستثمارنه پيدا کيږی، —

يعنی‌که انفرادی ظلم اوسحروميت دي‌که اجتماعی

او ملی سجبوريتونه او بدبختی دی‌دټولو وجه داده

چی يوخوزوراو راوغتهان دادعوا لري چی دوي

دسوردنس نه جنتيان پيدا دي اوددنيا پ‌ه‌مخ لکه

دجنتيانو ژوندکول‌ددوي حق‌دي — اونوراولس

ز

ددي دپاره پيدا دي چې ددوي دپاره خواري او کړي

دوي ته جنت جوړ کړي او هغوي خپله پيدا هم لکه

د دوزخي شي او سړه هم لکه ددوزخي په عذاب

مصيبت ، تکليف او بدبختي کې — کبراد خپلې جامعې خپل

عصر او خپل او لس — ريښتوني شاعر ده ده — ددي

حساس زړه دافرق او تميز ډير په شدت سره محسوس

کړيدي او بيادي شاعرانه صلا حيتونو دا احساس

په ډير تيز او جوش سره بيان کړيدي هرڅوک

چې ددي داشعارو دابرخه لولي نو پوهيږي چې داد

وخت صادقه شاعره د خپل محيط داو لس داجتماعي

دردونو ترجمانه ده او داجتماعي عدالت دسنګ ته

راوړلو يوه بيداره او زړوره مبارزه ده لکه چې

د ا شعار يې څرګندونه کوي:

\+ \+ \+

خواران له لوږي انتظار کړي د مرګ

بډ اي صاحب ته پلاو ونه ډير دي

يتيم له ا و بنکو اوزړه غوبنو څخه

خان ته شراب او کبابونه ډير دي

تاڅنی ځان په خر مستی کښی وو بـ دي
ما و ریتوي ز ما داغ ر و نو جها ن
تـه د خو بښي نه ا تنهو نه کو ي
ز ما د نیا د کړ ا و و نو جها ن

شاعر ه فلپین ته لاره دمـ هلته دهغه وطن دطبعی ښکلا او ز رغو نه غرو نو په تماشو او سیلو کښی ور ته دخپل اولس ژوند را یاد شو ید ي ـ نو

«برابري » نو مې نظم ئې لیکلی دي ـ د افیصله خو به دفلپین اولس کو لی شي چي هغوي دغه «ز رغو نو غرو نو» په « طبیعي ښکلا » کښی خوسره خوشحال دي ـو لی د کبراد نظم نه دا اندازه هر څوك لګو لی شي چي د « فلپین » دښکلا دصفت په بهانه (پلمه) دخپل او لس داجتماعي ژ و ندز خمو نه او در دو نه ډیر په هنرمندی او فن کاری سره بیانوي ددي نظم نه دایو څو شعرو نه د نمو نی په ډ و ل او لو لی :

دلته دیو بل په حق تیري او تجاوزنشته
نه دخوار له غو ښو جو ړ بنګلي ته کبابو نه دي

ط

دلته فیوډالان د چاخدایانچیري کیداي نشی
نه دخوارله و ینوجوړ بی‌بی ته‌لا کتونه‌دي
دلته د بشر په نامه قدر د انسان کیږي
نه‌چی‌بډاي ښه اوپه غریب‌باندي‌ظلمونه‌دي
ګران افغانستانه ستا په سینه دي سوګندزما
ناسته مظهري دلته له تاسره يې فکرونه‌دي

دغه رنګ‌د «غریب‌آواز» نومی نظم په دي موضوع یومکمل او کاسیاب نظم دي .

او «ربه» نومی نظم کښی دا اشعار ددغه موضوع څوسره ښه ترجمانی کوي :

دا کوم‌انصاف‌څرنګ‌قانون‌او عدالت‌دي‌ربه
چه یوخندانه نه‌سړیږي بل‌ژړیږي مدام
ربه لتانه سی‌ددغه‌سوال جواب غواړمه
ولی‌دي‌یو بنده‌خوشحال‌اوبل‌څوریږي‌مدام
ستادبی‌وزلومخلوقاتو پاکی هیلی ولی
ستادزورسندبنده په‌لاس کی نابودیږي‌مدام
ولی دګڼ‌شمیرمعصومو انسانانو وجود
لکه‌لینځکه‌دیو بل‌لاس کښی لوبیږي مدام

ساچي څو مره دمظهري اشعارلو ستی دي ـ نو داسی

سی محسوس کړیده چي دا«انسان» دخپلی خاوري

خپل محیط خپل ملت او خپل انسانی درد ونو نه

دخپل زړه او عشق دنیاته نه ده او ز ګاره شوي او

که او ز ګاره شوېده نو یاخو ډیر کم او یایی کیدای

شي چي د پښتني ماحول هغه قیودو چي دحیاپه پاک

او سپیڅلی نوم یې ددي محیط دښځو ډیر صلاحیتو نه

هنر و نه او قدرتونه دپر دي لاندي پټ کړي د ي

د کبرا د عشق او مینی ا شعا ر هم چي دي به

ډیر لیکلی وي زسو نږد هم عصراو لس د ستر ګو نه

پټ ساتلی وي ـ که داسی وي نو دابه دپښتو دشعر او

ادب سره ډیر زیاتی وي ځکه چي باید د کبرادنورو

اجتماعي ، ملي اوسیاسي اشعارو غو ندي ددي عشقي

اشعار هم دپښتو ادب دناوي غاړه کښي دښایسته ملغلرو

د امیل په ډول د دي ناوي د انځو ر او ښکلاسبب

شي بیاهم چي کوم اشعاردي مجموعه کښي راغلی

دي هغی کښي ددې ربښتو نی پښتني شاعري دزړه

ددنیاز خمونه او دردونه او دمیني دمنزل پر هر و نه

او فریادونه دفن او هنر په جامه کښي بیا ن شوي

سوجود دي چې د کبرا په شاعرانه قدرت
نازک خیالی او لطیف احساس دلات کوی لکه :

د استا سینه شوه ا لها م زما دشعر
ګرانه ته سی د شعرونو شراره یې
راځه هروخت دیار خیاله ستړي مشی
مظهري د سترګوتور دزړه قطره یی

* * *

په میخانه کی ستا د شونډو په یاد
نسکو ر پر اته قدح مینا د ر پسی

* * *

طبیعت ښکلادي د یري خودزړونو
ښکلانشته ځکه زړ مینا قرارد ي
خورم سوګندستاپه ښکلا او خپلهمینه
دګلانوډک چمن راته خار زاردي

داوه دکبرادشعرددي مجموعی پههکلهځمامطالعه
او راي زهدانشم وئیلی چې دابه دلوستونکو نظر
کښی د کبرادشاعري دمطالعی و اتعی تصویروي
ځکه — چیشعر د شاعرد احساساتو تأثراتو او
هنرنهجوړیوداسی ګل دي چیهرڅوک تريدخپل
شعورذوق اوموډ( Mood ) مطابقپهخپلهاندازه

ل

خو ند اخستی شی.

البته دا ضر و روایم چه ماد کبرادشا عري دسطالعی نهثه در ک کړي د ي هغه مي‌او لیکل‌او ددي‌ر پښتو نی پښتنی ملی، او لسی شاعري د کلام د امجموعه او د دي پهکله په دي خوجملو او الفاظو کښې زما خپله سطالعه او راي تولو هغه لوستونکو او رونړ و ،خویندو ته چی دا مجموعه پهلولی، وراندي کوم– حق‌لري چی‌هر څو ک يې د خپل شعو ر، ذو ق، جذاباتو اوسوډ ( Mood )
په تقاضاکې مطالعه کړی او رای پرقایمه کړی.

د خدای په امان

اجمل ختټک
کابل–دریمه کار ته
۸ – ۱ اګیوست ۱۹۷۵

م

# کبرا مظهری

شا عره شیوا بیا ن کبر ا بو د
عا لم و شا یسته‌و د انا بو د
مقصد ش با شد تعالی و طن
بسکه اشعاوش همه ز یبا بود
نظم و نثر ش جمله‌مر غوب‌و رسا
د ایما غم پرو ر و یکتا بو د
با فصاحت شعر پشتو بی نظیر
ن

C f

قصه ا شعا ر ا و هر جا بو د

د ر سخنر ا نی به ابنا ی و طن

غم خو ر د هم د یدهٔ بینا بو د

میکند تد ر یس علم و معر فت

بهر و ر ا ز صحبتش ا بنا بو د

جسم ا و شد منبع علم و کما ل

چو ن صر ا حی سا غر و مینا بود

نخل قد ش خم سا د ا د ر چمن

نا د ر و هم نا بغه سیما بو د

نام ا و« کبر ا » تخلص « مظهری »

علم و فهمش ا ز همه‌ها لا بو د

قد ر ا و ر ا گر نمید ا ند کسی

بی شعو ر و بی خرد ا عما بو د

یا ا لهی د شمنانش خو ا ر با د

ذلت و بی پر ده و ر سو ا بو د

میکند « لمعه » به هرجا وصف او

تا زمین و ا سما ن د نیا بو د

زلیخا لمعه

۱۳۵۴ س

# کبرامظهری په ویاړ

غلام محمد ۱۳۵۵
ولسی شاعر

ډیر افرین په لوړ همت شه د کبرا مظهری
سر یې په جونوکې اوچت شه د کبرا مظهری
زړه یې د توری په شان زړه د هر دښمن غوڅوی
په تیز کلام باندی رحمت شه د کبرا مظهری
لمبو د شعر یې د غلیم زړه کې داغو نه ایښی
شاباش په د غسی قدرت شه د کبرا مظهری
دی پښتنو زلمو ته گل دننگ په سر تومبلی
مونږ ته منظور دغه خلعت شه د کبرا مظهری

ع

د سینی ډکه جام یې په لاس کې تل په قام ګرځوی
نصیب دهرچا دا شربت شه د کبرا مظهری

شاهین د فکر یې پرواز کا د پښتو ن په فضا
ډکه له مفاده دا رفعت شه د کبرا مظهری

د لوړ وغرو نو بازانساتی خپل« د زړه په وینو»
قربان له دا رنګه الفت شه د کبرا مظهری

پښتنی پت یې خپل اصیل دغاړی هار جوړ کړی
د ادب ښکلی شال زینت شه د کبرا مظهری

هره جمله یې ځانته ځانته دا ستا نو نه لری
معنی ته ځیر د هر لغت شه د کبرا مظهری

چې اعتلا دګران هیواد افغانستان غوړای دا
د نیا یې مثل دجنت شه د کبرا مظهری

[redacted]

د شلم قرن په دری کې د ه ممتازه (مخفی)
پښتونه فخر د ا شهرت شه د کبرا مظهر ی

دا شا عر ی، د امتانت او داخد مت د وطن
افغا نی پېغلو ته عبرت شه د کبرا مظهر ی

د تاریخ پاڼو کې زرین د ی وی لیکلی رنګین
ا بد ی پاتی دا صفت شه د کبرا مظهر ی

چی احساسات را پاروی (موسی زی) وایی زمونږ
په عمر د یر د یر برکت شه د کبرا مظهر ی

# د اکبر مظهري ته

شعر څه دی ؟

د دردونو او رنځونو
کړاونو، عذابونو
بې وسیو، بې وزلیو
بد بختیو، بد مرغیو

غوږ نتوب دی
بل څه ندی !

* * *

د پوړیز، کرکجن ځبېښلو
یرغلګرو، تالاګرو
د ښکیلاک، تاړاک
پر ضد،

اوچت غږ دی
بل څه ندی

ق

تو دی سینې زیږولی
خپلهٔ غیږ کې یې روزلی
مړو چتوب ته یې رسولی
په هر څه یې پرته کړی
ستري سینې انعکاس دی
بل څه نه دی !
شاعر څوک دی ؟
شاعر پوه د ژوند په راز دی
سونې، سپړی دا ی ساز دی
د ولس تالو آواز دی
او نیز غږی او هم باز دی
دا شاعر دی
«ژمن» شاعر دی !

کبر ا ستا شعرو نه ښکلي

ماپه و ا رو ارد ی لوستلی

تا ر ښتیا ر ښتیا و یلي

په د ر دونو د ی نوللی

همد ی ځا ی کی مه تمیږ ه

و ړا ندی ځه، مه ایساریږ ه

مفتاح الدین



ea

# غوښتنې

بیا که ربه زړه کښې سینه محبت را

تورو شپو لره رڼا د معرفت را

جهالت تورو تیارو څخه سی ژغوره

ذوق د پوهې، د کمال او علمیت را

دگوندی او د نقاق څخه سی ساته
سمه لیاره د وحدت او صداقت را
یم اخته په سز خرفو رسوما تو
رنهایی راته د حق او حقیقت را
چی ود انی د وطن شاړی سیري کړم
ربه ساته تو ان دکاراو دخدمت را
د دنیا مال او دولت سی په کار ندي
غم څولی زړه زما ته عافیت را
دمعنی په نور چې زړه یې روښان نه وي
اما ن ماله د هغو له صحبت را
چې بی غیر له تاسرټیټ نه کړمه چاته
توفیق ما لره د داسی عبادت را
چی د زور ظلم ساني کړم پري رارنگی
هسی رنگه واقعی شانی قدرت را
( مظهری ) دغه ارزو لری له تا نه
په صحیح او سمه لاره هدایت را

۲۵ ر ۳ ر ۲ ر ۱۲۴۳

جلال آباد

# پیغام

ستا همت ته اسمانونه را ټیټیږي
ستا تدبیر ته تقدیرونه تسلیمیږي
ته توفان ته زلزله او سمندر یې
ستا له عزمه قیامتونه او چتیږي
چې یې ونیې دې ستا ښېلې زرو جام کې
ستا همت په سوک به خوله د دوي ماتیږي
حق په زور اخیستل کیږي په دې پوه شه
پاڅه او ډشه که ښه ژوند له دې زړه کیږي
د ظالم او د سفاك به سر شه تندر
ستا ارزو ارمان به دا رنګ تا سینیږي
دا قاتل د شرافت او د ایمان به
یوه ورځ ضرور ستا حق ته قائلیږي
د یو نوي ژوند تکل ته که را پاڅې
لوي واره به ستا له نوم ځنې ځاریږي
که پانه څې نو د نوم په اخیستو دي
د بشر تاریخ په خدایږو چې شرمیږي

# رحمان وایي

ربا ب ته شرنګ و رکړي د لدار را غلی
پیا لو ته کړ نګ و ر کړي بهار راغلی

نو ر به ز هیر په ز ړ ه بیما ر نه یا ست
له ژو ند ا نه نه به بیز ا رنه یاست
ستا سو ا مید خو تی به ګل شی باغی
هیله ده نور به خوا ر او زا رنه یاست
وطن به ستا سو و اکه د بل به نه وي
د کس نا کس به منت با ر نه یا ست
تش په نا مه دیمو کراسی به نه و ي
په حق غو ښتو به سرپه د ارنه یاست

د ر ښتیا نی پسر لـی ما لیا ر ر ا غلی
پیالوته کړنګ ورکړی بهار راغلی

ا ي غیر تـمـنـد و پښتنو زلـمـو
ا ي بـا همته مـیـړ نـو زلمو
تل مود نیاته خپل ستړ ز و ر ښو دلی
په رحما ن ګرا نو ننګیا لو ز لـمـو

اي د خوشال ا يمل د بڼ ګلو نو
اي با جر ئـتـه ز سر يا لو ز لمو
ستا سو عظمت ته فـلـك سر ټيټو ي
اي ننـګـيـا ليو تـو ر يا لو ز لمو

جو ړخپل داوران ملك ګړي نن و ار راغلی
پيا لو ته ګړنګ و ر ګړي بهار را غلی

دغه پسرلی کـې نوي خوند هيلـه ده
د و ا قعی ر ښتيا نی ژ وند هيله د ه
د غـمـځـپلـی کـړ يدلی ا و لس
د تس نس بـڼ دسم پيو ند هيله د ه
وړي مز د و ر وينی چې خښلی مدا م
هغه با د ا ر په غو ښو شخوند هيله ده
و يښو ز لـمو قهر ما نـا نو ځنی
دخو ار مظلوم هو ساژوند هيله ده

خلا ص به له غم نه شی غمخوار ر اغلی
پيا لو ته ګړ نګ ورګړی بها ر ر ا غلی

نو ربه د غم په لاس کې نه لو يږي
دظلم اوزوربه او ربه‌نه و ر ټسيږي

ستا سو محل به د سړ و قبر نــه وي

ژ و ند ي ژ و نديبه‌په کې نه ځنبیږي

لوږی له و يري د اولاد په خرڅون

امید دي نوربه په زړه‌نه د رد یږي

شا ړي میر ي بــه مو و د ا نی‌شی

ز يري کوم په زو ړ حال نه پاتیږي

راو پښ شی وخت د کار او زیار راغلی

پیا لو ته کړنګ ور کړي بها ر را غلی

۱۷ر۱ر۱۳۵۳ کابل شیرپوروا ټ

د رحمان‌باباد کالیزي‌په‌و یاړ

# د مظلوم شکوه

او ښکی مې بهيږي تل مدام يمه ژړ اکې
وسوزي نصيبه ستا د لا سه يم غوغا کې

نه مې ناز د پلارو ليده نه چا راوقربان د مور
وچ بو تې وم لوي شوم پير ته رژم به بيديا کې

هر څه چې مې وکړه خو افسوس چې و اقعې سينه
و نه مونده ماپه خورا وورو رنيکه آنا کې

چا ته شکایت وکړم عجیبه شان د نیا ده دا
هرچا ته چه گوري هاسشغول خپل تماشا کې
دوست او آشنا پر پر ده‌خپل کهول رانه بیزاره‌دي
ځکه چې نادا ریم او څه نه لرم په خواکې
ژوندسی دي دغسی نه پوهیږم پس له سرگه به
چیر ته او زه پروت به یم سوالی کفن د چا کې
نه‌شته د چارقدردي پریوتی انسانیت کښې کاش
کورسی وای ډیرلري لدي ځای کومه صحرا کې
درد او انه‌یښنی دی هری خوا ته‌چې نظر کوم
ژوندله ناکاسی نه تیر ومه په د نیا کې
آه داحساس ناوي ده دسر کې‌په رنځ اخته پرته
غم د ي مصیبت د ي هر پلو مځکه فضا کې
روح سی له‌ستړیانه په هردم کې تیندکونه‌خوري
ښکاري سی ترستر گو کاینات غمجن هرخواکې
پام چې پري غلط نه شي سر خي دشفق نه ده دا
وینی سی د زړه دي چې ښکاریږي په سما کې
وچې شونډي گرځمه تو به څوسره بی رحمه یې
راوړه ساقی ژرشه که لري څه په مینا کې

۱۳۴۹/۸/۱۴

جلال آباد

# د یو زړه دوه ټوټې

توري لړي د پښتون په کور خوري دي

هر پلو ته د افق لمنی سري دي

تس نس شوي شان و جود دي په ځو ځایه

که قصاب د چا هډونه ځوځای پري دي

څه که لردي او که بردي واړه یو دي

د یوه زړګی نه بیلی شو کتري دي

له آموه تر جیلمه یو پښتون دي

یو بې کور دي او شریکی هدیري دي

د یو ه پلا ر د و ه ځاسن سکه‌دو ه و ر و نه
د کا بل د ننګر ها ر که دمیر ي د ي
چا غلیم و ر ته د ا م ایښی دفریب د ي
دا بـازونـه د پښتو ن د سـر د ر ي د ي
ز ما نی ته زموږ بل ا ز میښت مطلو ب د ي
ځکه بیا د حو ا د ثوستر ګی سر ي د ي
غلیما ن د ي ر اته نه ګو ر ي په سپکه
لا مو ا و س هم د خنجر څو کی تیري د ي
لا تر ا و سه د پښتون نغر ي تو د د ي
لا ژ وند ی مو د نیکونو خا طر ي د ي
که پو ره له زلمونه و ي نو د ي پر یو د ي
د ملا لی له مز ار ه داسو ر ي د ي
مو ږ ه پیغلی ملا تړ و ا و پسی د رو مو
د ز لمو خبر ي خو شی مسخري د ي
( کبرا ) او با سه بنګړ ی له د و اړ و لا سو
چې ځوانانو په لاس کړي اوس ګجري د ي

د پښتونستان دمشاعری په‌لړ
کی
۹/ ٦/ ۱۳۴۴
کابل

# خپلواکۍ ته خطاب

دپښتونوالی دژوندي موجوديت نښه يې
لتاقربان شم خپلواکۍ دشرافت نښه يې

زموږ نېکويی د سرونوپه قيمت ګټلی
خپل متهورو شازلمويی په قوت ساتلی

روح د پښتون يې دژوندون دسعادت نښه يې
لتا قربان شم خپلواکۍ د شرافت نښه يې

چېآزادي‌خپلواکۍ‌نه‌وي ژوندپريشانه‌ښکاري
دکمترۍتيټ‌ذهنيت نه سرګردانه ښکاری

جوهر دژونديې د پښتون باباديت‌نښه‌يې
لتاقربان شم خپلواکۍ دشرافت نښه‌يې

دي پښتانه‌ستاپه قيمت اوماهيت باندی پوه
ستاديرغ دښکلی سيوري حقيقت باندي پوه

دسر په و ینو به دي ساتو د وحد ت نښه یې
نه تا قر بان شم خپلو ا کی د شرا فت نښه‌یې

اي خپلو ا کی دنیکمرغی درون سبازیری یې
چې قوم‌سلت پور ته کوي دهغی سازیری یې
ته دپښتون ( امان ) دتو ري شجاعت نښه‌یې
لتا قر با ن شم خپلو ا کی دشرافت نښه یې

د ژ و ند جو هر ه‌په همت او صد اقت دي ساتو
پیغلی ز لمی سره یولاس یوپه وحدت دي ساتلو
وایی ( کبرا) دژ و ند پو ہنی دعفت نښه یې
لتا قر بان شم خپلو ا کی د شرا فت نښه یې

۱۳۴۲/۵/۲۶

خو ز یانی

# لوګړي پیغلې ته

لوګري پيغلې چيټ کميس نه دي تا سو نه قربان
خيري ګريوان نه دي کمخواب بخمل لعلو نه قربان
اي د عفت څادر کې نغښتې د ښکلا ښا پيرۍ
ستاله حيانه يورو پې بې شرمه نجونه قربان
دا غزو ږ کې پښې ديو وړي د پارلمر کې
ځان ګړوي ستاله همت بې کار سرو نه قربان
ته په ټکرټکر لباس کې لکه حور ښکاري
له زوړ ټکره دې دبي ښايسته شالونه قربان
په سپين تندي دي له ګرمۍ ځنې خولې ساتې شي
اف قدر نه کړي م نت نه دي جګ غرونه قربان
ته دسهار نه تر ماښام يو کپ ډوډۍ د پاره
زحمت وکاږې ستاله خوارژوندون ملکونه قربان

ساده ښلا کـېـ دي جذ به دمقناطيس پر ته ده
له پاك احساس دي‌دبڼاي صايب‌جيدادو نه‌قر بان
معصوم نظر کېدي طوفان او زلزلى پر تى‌دي
سوړاسو يلى څخه دي مڅکى اسما نو نه قر با ن

۲۲ر ۳ر ۱۳۴۹

خوږ يا نۍ

# توره او قلم

له اجتماع ځینی قوت راځی
ټول سرا د و نه په وحدت راځی

فرده ځان حل کړه په ټولنه کې دي
غېږي چې یوځاي شی قدرت راځی

په ځان کې ورکه داړه یانه وا وره
چې ډله پریږدی پری افت راځی

اي جهالت خوړ لیه د او سنه
چې په جا هلو مصیبت راځی

تکل د پوهی معرفت دي په کار
په معرفت زیب او زینت راځی

نا پوه ز لمی نه شنډهو نه ښه ده
چې یې د سیوري نه راحت راځی

توره قلم کړ مسر مل پښتو نه
دوا ړه چې یوځاي شی، نهضت راځی

د تیرو یادپریږده اوس ستاسو قع ده
له هد یرو د ا نصیحت راځی

تعمیر د ژ و ند جو ړ په تعمیل سره شی
ستین قد ر ت په ستا نت ر ا ځی
اول تکمیل کړه دژ و ندون ا ړخو نه
بیا بـه خبر و ته نو بت ر ا ځی
د ژ و ند انه سر ه کړه سینه پیدا
سمو ن د ژو ند په محبت ر ا ځی
خوبند و دازیري ( مظهری ) ر ا و ړ ي
چې په و حد ت کې سعا د ت ر ا ځی

۲۷ ر ۹ ر ۱۳۴۲

جلال آ با د

# زلمیانه

د اتوري شپې په رڼو سحر بدلول
زلمیه تا نه شوګیرو نه غواړي
د رڼ سحر ګټل آسانه نه دی
غیرته تا ځنی سرونه غواړی
چې له ظلمته را بهر شی ژوندون
د زړو نو وینی ځراغونه غواړی
اي د تاریخ د پګړی ګله اشنا!
تاریخ له تا نه‌سم کارونه غواړي
خپل سرنوشت په‌سم ایمان وتاکه
ژوندي ژوندون‌دا ایمانونه غواړي

نو ر دتدبیر ا و د عمل و خت د ي
سمژ و ند ا نه ته د تکل و خت دي
که له وطن نه شولی جا ر زلمیه
پیغلی به تا ته سلا مو نه کوي
د و طن ډ یر ي نا ز نینی نجو نی
ستا د مز ا ر ا حتر امو نـه کو ی
دسر پوړ نی به قر با ن کړ ي د ر نه
ستا له مز ا ر به طوا فو نه کوي
هر ه جمعه به دي مزا رتو د یر ي
نجو نی به تل ستا ز یارتو نه کوي
دمزا رخاو ره به دي تل ښکلو ي
د خو ږي سینی به سوالو نه کوي
که د ا عزت غو اړي بید ا رشه کنه
د خپل غر یب و ل س په کارشه کنه
که ازادی لیار کې شوي رنګ په وینو
خپل تو ر پیکی به کړ مه جار در ځنی
که دوطن ناموس دي خرخ کړ په بل
ا خلم تیکر ی بدل د ستار د ر ځنی

پیغلی اسید په ستر گوگوري درته
لري د توري انتظار درځنی
په هغه د غه باندي ونه شوه نور
دوطن مور غواړي ایثاردرځنی
دغه دي وخت دي الله اکبر کړه پاځه
څوبه وطن لوټی اغیار درځینی
په د ښمنانو زلزلی کړه جوړي
د نوي ژوندنوي نغمی کړه جوړي

۸ر ۶ر ۱۳۴۷

کابل

د پښتونستان د شاعری په

لړ کښی

# بېوسي

ستا په مخ چې اوښکې رارواني شي
درزښي دزړګي خونې سي وراني شي
تا ته چې دروګورم په زړه زما
غم کوډلي جوړې شي وداني شي
ته هغه ګوهر يې چې سپيسره
ړو به شي هرڅه درنه بې ځاني شي
وائي د سېزونکو اسويلو سره
کله به خوشحا له يتيماني شي

هیڅکله به سونږ دنبی وسی په حال

پوهی اؤ خبری با د ا رانی شی

تانه ای معصوسی ! ای ښایسته بچی !

جاردی د ښنګلو رندی بیبیانی شی

ای په درد کې لوئی بی اسری بچی

ستاله حساس زړه نه دی قربانی شی

ستاله چاو دوچاو دو پښو لوګی لوګی

د غه بی ا حساسه ظالمانی شی

جاردی له وړو وړو سلګوشه د وی

تا چې کړوی دوی دی ستومانی شی

ډاډ درکومه داسی ورځ را تلونکی ده

ژربه‌دا خونخوا ری سرګردانی شی

شی به ورپه خوله د حقیقت سړ ی

خپل په بد سلوك به پښیمانی شی

بیا نو ته خندیږه خوشحالی کوه

ستا به غیلمانی پریشانی شی

۱۹/۸/۱۳۵۰ کابل

# څه وینم او څه نه وینم

د لته خو ښی او سعا د ت نه وینم
جذ بــه د حق ا و حقیقت نه و ینم
زو رو ر ظلم پــه کمز و ر و کو ي
په غــر یــبــا نو شفقت نه و ینم
جفا کا ر ي ا و بی ر حمی ده ډیر ه
ا نسا نــی سینه محبت نــه و یــنــم
هر خو اچې ګو ر م په مظلو م دي ظلم
صد ا قت نه شته عد ا لت نه و ینم

دلته انسان ګنهي ځان لو ړ د پاس آسمانه ځنی
کاشکی می کوروای لری ډیر له دی جهانه ځنی

د لته تنګــی او عــد ا و ت و ینمه
په - مسکینا - نـو مـشقت - و ینمـه
یتیم په تن لوڅ او په نس او ږي دي
دخان په جیب کې ډیر د و لت و ینمه
د کو نډ و ر نډو د زړ ه و ینو څخه
د بی بی غـا ړ ه کــې لا کت و ینمه
یو خو ا له ډیر خو راك فشا ر د وینی
بل خو ا له لو ږ ي هلا کت و ینمه

جهالت ډیر دي انسان تیټو ینم حیو انه څنی
کاشکی‌می کو رواې‌لري ډیر له‌دي جهانه‌څنی

د لته ر نـګین شکلی ګلو نه نه شته
د بـلـبـلا نـو آ و ا ز و نـه نشته
چې فر ق د حق او د با طلو و کړ ي
د ا سی وجد ا ن داسی فکرو نه نشته
چې د و طن د آ ز ا د ی د پا ر ه
سر کړ ی قر با ن داسی میړ و نه نشته




د ر نځو ر ا نو زخمی زړ و نو با ند ي
ما لـګـه شیند ل د ي ملهمو نـه نشــته

دلته تنګ شوي یم غدار او له شیطانه ځنی
کاشکی سی کوروای لري ډیر له دي جهانه ځنی

د لته غیبت او تو متو نه ډ یر د ي
خلاف له عدل نه کارونه ډ یر د ي
و جدان کړي خرخ د څوپیسو د پاره
نـو ع بشر کې فر یبو نه ډ یر د ي
خو اران له لو ږي انتظار کړ ي دمرګ
بډاي صا حب ته پلو و نه ډ یر د ي
یتیم له او ښکو او ز ړ ه غو ښو څخه
خا ن ته شر ا ب او کبا بو نه ډیر دي

(سظهري) و ایې زړه سی تو ر دي له انسانه ځنی
کاشکی سی کو رو ای لري ډیر له دي جهانه ځنی

۵ / ۵ / ۱۳۴۳
خو ږ بازی

# مه کوه

پښتنی‌خو ر ي‌نو ر فیشن ر قم‌رقم مه کوه
خپل تهذیب و ساته‌پیښی دنو ر عالم مه کوه
ته‌پښتنه يې زمانه خوي دسلالی غو اړي
سیرت‌دي‌ښکلی کړه‌دتش‌صورت هیڅ غم‌مه کو ه
تاته‌ساتل‌دپښتنی‌تهذیب په کار دي‌خو ري
له‌پښتو نو الی نه بهر کارو نه هم مه‌کو ه
دماغ صیقل په معرفت کړه‌ناپو هی بده‌ده
ز یاتی کار و نه‌په تو تکو تاو یز او دم‌مه کوه
د اجتماع سمو ن‌په‌تاشی ته‌سو وله‌ښکاري
ځان سنور کړه‌نو ر په‌ځان باندي ستم‌مه کو ه
او لاد دی‌روز ه‌چې‌قومی ژوندون‌سمون پیدا کړي
قوم درته گوری پښتنه‌يې دبل‌چم مه کوه
تهذیب‌دي‌خپل کړه‌او کمال‌واخله‌له‌نور وځنی
یو اځی‌غم دسینی‌ژ و ب او هفت‌قلم‌مه کو ه
د پښتو ن لو ري‌د( کبر ا)در نه‌ار ز ودغه‌ده
چې له پښتو ځنی بهر کارو ته‌ز غم‌مه کو ه

۲۰ر۴ر۱۳۴۴

خوږیانی

# ابدالي زور او قوت شه

دا چې پروت د خاورو غېږ کې
پټ پرده کې د ظلمت دی
دا چې خاورو کې بلېږي
په رڼايي زمونږ صحبت دی
د پتنګ په څېر هر خوا نه
پرې راټول افغان ملت دی
چې تقدير ترې لړزان ښکاري
باچا خان د کور عزت دی

د اد خـا و ر و خـلی ګـو ري
خا و ر ه نه د ه د غه کو ر د ي
پـکـې نغښتی ا و ر بـڅـري
د پښتو ن يـو لوي غمخو ر د ي
د لته پر و ت د پښتـو نـو ا لـی
قهـر مـا ن سـلـنګ بـا تـور د ي
سـو نړ ته و ا يی ها خی ها خی
د غه ژ و نـد د ر ته پيغو ر د ي

* * *

سـلـنـګ حـا ل په ژ به و ا يـی
پـښـتـو ن نسله بـا هـمـت شـه
مـا يـو سی کيسی شـو ي هير ي
وخت ر ا غـلـی جو ړ غيرت شه
غلا مي ژ و نـد حيو ا نيت د ي
يـو کـتـلـه د ي شر ا فت شـه
حسا ر ت پـر د ي کـړه خير ي
ا بـد ا لی ز ور او قو ت شه

یا ازاد په خپل وطن شه
غیرتی ژوندون اعلان کړه
یا په کور کې غلی کښېنه
چادري ټکري په ځان کړه
یا پښتو پسې ملنګ شه
خوښ په کور کې ملنګ جان کړه
یا شانه او آیینه واخله
د سیر سنو ساز سامان کړه
لراو بر سره یو ځای شی
د پښتون کورګې ودان کړي
د غیرت توري را واخلی
شرمنده خپل دښمنان کړي
شنه زسریان شی ورک له سلکه
دا بی پته غاصبان کړي
ننګیالو ځلمو ترسره
پښتنو پیغلو آرمان کړي

۱۳۴۷

د ملنګ جان په قبر مشاعره

جلال آباد

# د وحدت

وراندي ځي کاروانه د وحدت سره
ملا اعتلا ده د همت سره
هغه چې پښتون د ترقۍ کوي
شي به وړوبه برخه د زحمت سره
څوچې دوحدت لاسونه ورنه کړي
نه به شي ا شناد لوړ شوکت سره
ټينګ راځي بنسټ دژوند دلوړ تعمير
سينه تعاون او معرفت سره
صدق او وحدت چې وي ګانه د چا
يو ځاي شي ليلا د مدنيت سره
کوم قوم چې موصوف په دي صفاتو شي
رسي به هدف ته په سرعت سره
واي (مظهري) لرمه دا ارزو
وصل مي وطن شي د نهضت سره

۱۳۴۲/۹/۲۳

جلال آباد



په خوله دروغ په زړه کې دروغ او وېنا دروغ
رفتار دروغ کردار دی دروغ او ادا دروغ

غیر له د روغو څخه بله وینانه ا و ر ي
غوږکې دروغ په سر کې دروغ دژو ندسود ادروغ

نو ر په دروغو تیر ایستل د یو بل پر یږده
ټول پوهیږي دوخت یاره هر څه ستا د روغ

ستر گو لا ندي پټ پټو نی خندامه کړه
نازدی دروغ ادا دی دروغ او خندا دروغ

چې څه‌وائی‌چې څه لیکی وا ړه دروغ د ي
لیك دي دروغ انشاء دي‌دروغ او اسلادروغ

ښکته پو ر ته ځغلیدل دي تش هوس د ي
آه‌دي دروغ فریاددي دروغ‌ناله‌ژړا دروغ

ستاخه خیال د ي ګنی څوك به خبر نه و ي
څه دي کړي ؟ څه کوي؟څو پو ري دادروغ ؟

تګی د ا م د ي ټولوه ازاد شا هین یم
رښتیا وایم ستاپه څیر نه زده زما دروغ

نور د رب د پا ر ه بس شر م پکا ر د ي
په عالم کې کړي مخ تو ري اورسوا دروغ

زه د ي پیژ نم که د ا نښه رښتیا و ي
ته‌لیا څه چې‌وائی‌ستادوست او اشنا دروغ

۱۳۴۹ /۸/۴
جلال آباد

# د معلم مقام

معلم دي رهنما د معرفت
تور تم فکر ته رڼا د معرفت

د بشر د ژوندانه د ښکلا راز دي
معلم صاحب د دومره امتیاز دی
چې انجام د سعادت د ده اغاز دي
یو موصوف دي چې توصیف ځنې بېنیاز دي

ښایسته شوي په معنی د معرفت
تور تم فکر ته رڼا د معرفت

خدای ورکړي طبیعت کې یو اثر دی
انسانان له تیاروباسي لوی رهبر دي
ارشادات یې یو له بل ځینې بهتر دي
د عالي اخلاق تهذیب پوهې مظهر دی

د زړه رنځ لره دوا د معرفت
تور تم فکر ته رڼا د معرفت

د ازمونیو به طبیعت کې پوهه روزي
د وکړو به عادت کې پوهه روزي
په افعال او په خصلت کې پوهه روزي
په هر سر او هر صورت کې پوهه روزي
ورته وا پولوي پیشوا د معرفت
تور تم فکر تسه رنا د معرفت

۱۳۴۲/۸/۲
جلال اباد
د معلم ورځ

# همدردي

را شی همدردشی د یو زلوا و خوارانو سره
د کونډو رنډو و بېر سرو یتیمانو سره
ورکړی لو یدلو ته دسرستی، لطف کرم لاسونه
غم کې شریک شی د غمجنو رنځورانو سره
انسانان واړه د یوه وجود اعضا یا د یوی
په دی خبرشی مینه وکړ ی همنوعانو سره
که د تاریخ پانو کې ښه نوم یادول غواړی خپل
نو ښائی داچې شی همدرد د غریبانو سره
تش په نامه باندی انسان انسان کیدلای نشی
څوچې ملګری دردکې نه شی دردمندانو سره
د خود بینی او تکبر حس له مغزو کړ ي لري
بشري مینی په لیارد رومی انسانانو سره
څوبه ښایسته بنګلو کې ناست یاست د عزت په کرسی
په یوزي کښېنی یوګړی د مظلومانو سره

چې له خوارانو نه د فیس د پیسو طمع نکړی
ښه‌ښکا ری دارنګه ځوانی د ډاکترانو سره

مسوول ګڼلی شی هر څوك دخپل قدرت په‌قدر
و کړ ی کومك‌د غــم ځپلو بی وزلانو سره

چې خو اری سینځی‌دخیر لی ګر یو ان قدرو کړی
ر به پیدا د ا شرا فت کړ ی بادارانو سر ه

چې عدالت په‌ستر ګو یو شان تیت اوپاس و ګڼی
غو اړم داحس دخپل وطن زمام دارانو سر ه

(مظهری)و ایی‌چې‌بیو زلو حق پایماله نه‌کړی
صداقت بو یه ددی و خت د کار دارانو سر ه

۱۳۴۳ر۷ر۲۴

جلال‌آباد

دسري میاشتی دمخصو صی

و رځی په‌مناسبت

# شعرپلار

رنګین کړي چې د شعر ښکلی جهان دي
ځلاند ستوري د ادب په لوړ اسمان دي

د اسې ښکـلـی سلغلري د ي پـېـلی
شرمنده وړ ته یعقوت لعل او مرجان دي

بې سهنت يې په خوښی ښبه جام د زهرو
سداح نه وو نه د طمع بنديوان دي

د ژوندون تود وسړ و په مقابل کې
لکه و نه مستقيم پخپل مکـان د ی

د پښتو ن د ماضي پا کـه اينه کی
پاک تير شوي د شعرپلار عبدالرحمن دي

قناعت يې ترخرقي لا ندی اطلس دي
ظاهرخوار په حقيقت کې شاه جهان دي

زو را ور وکوراو کلی نه بيزار دي
په نفرت له او رنګ زيب او عزيز خان دي

حال په ژبه سونړته وائي را بيدارشي
ای پښتون غيرتي قوسه لږ هوښيارشي

اسمانونه ستاپښو لاندی څړيږی
فرعونان دي لهٔنامه ځينی بيريږي
حرکتشهٔکه دي‌ښهٔژوندون پهٔکاردي
پاڅه پاڅه په خبر و هيڅ نه کيږي
ستا وطن د زسرو ځاله وه پښتونه
ولی نن پهٔکی داتورکارغيان‌اوسيږی؟
ستا د ښڼ رنگينو گلاو په هرگ کې
دپردو په لاس د زهرورو د بهيږي
د ننگه غارهٔدي شوهٔولی بل تهٔتيږه
ولی پښو کې‌دي پيغورځنځيرشرنگيږي

# د دریاخان په ویاړ

په پښتونخوا باندي سین ته جار قربان و لیکه
قلمه پورته شه خدمت د دریاخان و لیکه

هغه پښتون ته چې وطن په لار کې سر ښندلی
هغه سالار چه و مغل ته یې سینه سپر نیولی
هغه زړور ته چې دښمن یې له نامه ویریده
باره کی لوی سغل ته زور دخپل خنجر ښو دلی

ته خدمتونه اوس دهغه قهرمان و لیکه
قلمه پورته شه خدمت د دریاخان و لیکه

نور دخو بانو شنه خالونه او پاولی مستایه
بس دي نور سالره ښایسته او ګلالی مه ستایه
چه د وطن د اعتلا ورسره فکر نه وي
زه به یې څه کړم ساته نور ناز دلالی مه ستایه

په‌بده و رځ د پښتنو شو راو فغان و لیکه
قلمه پو رته شه خدمت ددر یاخان و لیکه

و لیکه ژ رشه پښتنو ته ز سا سلام قلمه!
دز ړه په‌و ینو و رته شکل دغه پیغام قلمه!
و رلره و ایه ازادی مو شه نصیب پښتنو
دز ړه په‌سینه زساله خوا دغه کلام قلمه!

ز لمو ته پیغلو له‌خو اتیینګ عهداو پیمان و لیکه
قلمه پو رته شه خدمت ددر یاخان ولیکه

دازادی په‌لیار کې سرنه تیر یدل سزه کا
ددر یاخان په‌خیر دقام نه جار یدل سزه کا
چې‌سغز کې‌او ر په‌ز ړه کې‌شو رسلی‌جذبه‌نلري
ژ و ندورته‌عار دی‌دا رنګ‌خلکو ور کیدل‌سزه کا

دبی‌احساس‌بی‌پت ز لمی په‌حال ارسان‌و لیکه
قلمه پو رته شه‌خدمت د در یاخان و لیکه

۱۳۴۲ جلال اباد

د دریاخان د مشاعری په مناسبت

# شهید غلم

ژوندون سی تیر شو د دردونو سره
د اندېښنو کړاو غمونو سره
هدف پر او ته رسید لای نشم
په لیار کښې نښلم د داسونو سره
خدمت دی فرض دی خو معافه کړه ما
د لته نوم بدشی خدمتونو سره
د استاد مینې ارمغان دی چی نن
یمه بدنامه تهمتونو سره
تور قضاوت خوره فضا کې بابا!
لاس او گریوان یم توفانونو سره
زما د ځوان احساس سپیڅلی پیغله
لاړله گور ته ارمانونو سره

هیلی ما یو مه ا سید ونه لوټ شوه
غم سی سیلمه شو د عمر و نــو سر ه

د ز ړ ه تنکی غو ټی سی و ر ژ یده
د بی ا نصا ف خز ا ن با دو نو سر ه

سطر به بر خه سی ژ ړ ا ژ ړ ا شوه
نور سی ز ړ ه نه ر پی سا ز و نو سره

فلك ز ما تکړ ه غلیم شو ښـوه شو م
پــه ا شا ر و د قد ر تــو نو سر ه

سا قی له خم دی جار پیالی کړ ه ډکی
چې نا ا شنا شم د یا د و نو سر ه

جنون بی نیازی دنیا گی کې یو ځل
شـم سفــتخر ه ځنځیر و نـو سر ه

۱۳۴۸ ۷ / ۲۳
جلا ل ا با د

# د وړو تربیت

د وړو خدمت د لویو خلکو کار دی
د اسی کار دی چې پخپله یې په کار دی
لوی مسوول او مکلف دی د روزنی
پخپل ځای هر یو که سورده او که پلار دی
که صحت که نظافت که تربیت دی
د وړو د سوراو پلار په اوږو بار دی
په سوړ فرض دي چې د عصر په رمز پوه شو
چې او لا د ځنی د خه شی انتظار دی
که په علم په کمال کسب پوه نشو
جاهل پاتی شود ژوندد پاره عار دي
نن فرصت دی که د پوهی طلب وکړو
بیا سبا را نه تیر شوي د غه وار دي

تهذیب روزه د ا د ب علم په کورکې
د ا نسا ن پو هـه سبب د ا فتخا ر د ی
پسر لی د و ړ کتو ب يې تا زه ر و ز ه
نن دی غیږ کی نا توان پروت سباسالار د ی
نن زما او ستا په لاس کې دې د ادواړه
چې يې شاړ پر يږ دو که بې زمو ږ اختیار دي
مستعد ه و تر ه مځکه ده پـه و خت خپل
چې پري گل کر ی که خار زړه‌دی‌وا کدار دي
کو م ا و لا د چې و ې نا پوه‌ا و بی طلبه
دربه در خاو ری په سر او خوارو زار د ی
پس د شلو کلو جو ړ کیها ن نو ر د ی
نن دلسو میا شتو وړ کی د ي شیر خوا ر د ی
هـو پـه عـلـم معرفت تخنیك ممکن د ي
چې ز ما خبر ثبو ت شی دا ا قر ا ر د ي
( مظهری ) بی علمه لو راو زوی‌په ژ وند کې
نه مسعوددی نه خوشحال دی‌نه‌کامگاردی ۱۳۴۳/۷/۷

جلال‌اباد

د کو چنیانو د بین‌المللی

و رځی‌په‌مناسبت

# ارمان

کاشکې ترسره دا ارمان شي زما
رڼا رڼا هر خوا جهان شي
د مزخرفو رسو ماتو شخه
خلاص دژوندون ښکلي داستان شي زما
ډ یوه دعلم او معرفت په‌لاس کې
وا خلم تیاره نظرروښان شي زما
کاشکې د نور و مخکې تللونه هم
مخکې روان پاتي کاروان شي زما
د جهالت مهلك مرضه شخه
روغ دوطن وړوکی‌ځوان شي زما
د قوي عزم او ارادې په ټینګار
غرونه رغونه ګلستان شي زما
د (مظهري) دزړه ارزو او مرام
داده چه خپل وطن ودان شي زما

۱۳۴۲/۵/۱۳
خوږ یاني

# استقلال

له هر څه نه راته گران دی استقلال
زما ژوند زما نښان دی استقلال
یم ازاده زیږیدلی خپلو اك ژوند کړم
لوړ بیرغ سی په جهان دی استقلال
خو ژوندی یم ازادي به خپله ساتم
د نیکو نوا رمغان دي استقلال
لوی عزت په ژوندانه کې استقلال دي
خو د زما دزړه درمان دي استقلال
دبل لاس لاندي ژوندون بی‌ودی ښکاری
د نیکمرغه ژوند سامان دی استقلال
زما پت زما ابرود قوم عزت دی
د سلی ننگ نگاهبان دی استقلال
حاصل کړی پښتنو دی په سروو ینو
ځکه فخر د افغان دی استقلال
اسارت او غلامی ژوند ته پیغور دی
د شریف ژوندون کار وان‌دی استقلال

(مظهری) د خپلو اکی ترانی لیکه
خوږ له‌هرشعر او بیان دی استقلال

۱ ر ۵ ر ۱۳۴۴
کابل

# افغان زلمیته

پو ر ته شه ز لمیه کړ ه همت پیدا
زوي د لو ي پښتون یې کړ ه غیر ت پیدا
ژ و ندااساس دي تیینګ بو له ار ز و سر ه
کړ ه و ر سر ه سینه محبت پید ا

* * *

د ا د ږ ته نه ښا ئې چې جاهل ا وسی
یا په بده و ر ځ خوار او کاهل اوسی
ستر ګی دي نیولی نو رو جیب ته وي
یا د بل د لا س ځیز ته ما یل اوسی

* * *

ستا د و طن غر و نو کې لعلو نه شته
خا و ر ه کې یې خدا یږ و دو لتو نه شته
ا ي ز لمیه! ته که حر کت و کـــړي
ستا له پا ر ه ډ یر ډ یر نعمتو نه شته

خو به تا خفه او پریشان وینم ؟
خو به تا غمگین خوار او حیران وینم ؟
د ساینس تخنیک علمی پیړۍ کې به
ستا سخکښې روان قطار او ښان وینم

* * *

ای ازلمیه قام ته دي خدمت وکړه
ملا دي تړینګه وتړه همت وکړه
تللی د سیالانو قافلی درنه
ور ته شه راو یښه حرکت وکړه

* * *

جوړه د وحدت کړه سمه لار ځانته
شاړي د وطن دي کړه ګلزار ځانته
غرونه د وطن په لرزه راوله
وګټه ژوندون د افتخار ځانته

* * *

ستا په بده ورځ شاعر ژړا کوي
تا نه د ویښوالی تمنا کوي
تا نه په خوږو خوږو شعرونو کې
هیله د نهضت او ارتقا کوي

وا يې چې تر څو به کړي خوبونه ته
ځان باندي ظلمونه ستمونه ته
نشي رسيدلای خپل منزل لره
دا چې په لارا خلی سستگامونه ته

*     *     *

پورته شه زلمیه د پښتو سره
وښنه د مستی پیالی نشو سره
تا نه (مظهري) د غه ارزو لري
مات کړه د غفلت پیمان ویدو سره

۱۳۴۳ / ۵ / ۲۵

خوړیانی

# هيله

چې له څه نه ياستی خبر د چا غيبت مه کوي

په پاک لمنو ځلمو پيغلو تور تهمت مه کوي

څوک چې آزاده ژوندلري انسانيت ښه سلوک

گمان په هغه بد اخلاق او بدطينت مه کوي

څوک چې په ډير اخلاص او سينه احترام کړيستاسو

په بدی ده تعبيرو ی تري شکايت مه کوي

دخيال دنيا کې چې ليدلی کوم خوبونه تاسی

واړه غلط دی پدی پوه شی نور غفلت مه کوی

تاسی خپل شک او اشتباه رفع کو و د پاره

خلک امتحان کړي او ترشايې مذمت مه کوي

تاسو له وایم خبر لو خو ځان مو و پېژني
بس دي ترمنځ ديو او بل نور شيطانت مکوي
د صداقت په لاره د روسی انسانانو سره
د خپل مطلب د پاره چاسره الفت مه کوي
شخصی لانجو کې په بل تور پوری کول پستی ده
شی به سخ توري یو اړخيزه قضاوت مه کوی
( مظهری ) هیله کړي له تاسو عاطفه کړي پیدا
د ناز خندا د چا په غم او مصیبت مه کوي

۱۳۴۴/۹/۱۲

جلال آباد



وژاړمه چا ته چاد لاسه ګریوان څیري کړم
چیري به پیداد زړه درنځ پیالی اکسیري کړم
زړه سی د غمو د لاسه ږ نه شو دسرو وینو نه
آه سره سکر وتی غو رځو م ږ یرود رد ونو نه

لوبی سی په ژوند کېږي اخته په کړاونو یم

ډیره تنګه شوي یم ظالم ډیرو ظلمونو نه

جال یې دفریب زما نیولو ته خپور کړي دي

بیاهم زه کوښښ کړم نه ویرېږم له بندونو نه

یاسی امید ونه شنډول راته ښکاره وایه

یامی بهره منده په ژوندون کړه امیدونو نه

ستا په اشارو فلك زماسره تربور جوړ شو

خو به سپموم د اناکردي دي قدرتونو نه

ژربه د انغمی د زړه له سوزه هوا ګیري کړم

ډیري عاطفی به په زخمی زړګی دلګیري کړم

۱۳۴۳/۹/۱۶

جلال آباد




چې بې علمه وي څوک ژوند کې سرګردان دي

د ر په د رخاوري په سراو پريشا ن د ي

چې دژوند په رمز اګاه کوم سړي نه و ي

وړي تږ ي په بد حا ل ا ونا توا ن دي

۱۳۴۳/۳/۱۶

جلال آباد

چي خوږلی څو ک خا سا ر دبی علمی و ي
که يې سترګیم (١) وي ليدلو ته حيرا ن دي
څو ک چی دي عصر کې‌هم خوب دغفلت کړي
په د ي پوه شه څو ريدلی په هر آن د ي
چا چی علم په جا مه ځـا ن ملبس کړ و
هغه لوړاوا برو من په د رست جها ن د ي
چا چی ځ ا خسته په لا س ده يو ه د علم
لمر په شانتی ځليد ونکی په ا سما ن د ي
چې بی‌علمه اوناپو هه وي څوک ژو ند کې
با و ر وکړ ه تل اخته په اه فغا ن د ي
معرفت کښې د ي پراته دژو ند خوندو نه
دناپو هو ژو ندو ن تريخ په‌هر زما ن د ي
سعادت د ي که نهضت که شرافت د ي
هرا نسا ن لر ه حاصله په عر فا ن د ي
( مظهر ي ) وا وره‌بی غير له علم او فنه
ډير مشکل نن په دنيا ژو ند د انسان دي

---

(١): سترګی‌هم

# لیونی لیونتوب

که خمار یم د شرابو
که شوقمند د خرابات یم
که توبه نه کړم له سینې
ټینګ پخپل عزم او ثبات یم
لرم هره گناه ورانه
ستا پرې څه دي کاکاجانه ؟

که بې بد وغلې ناسته
یم ساقي د خم ترڅنګه
ستا په خیر شریره نه یم
ځان ساتم له بې ځای جنګه
یم د رندو قدردانه
ستا پري څه دي کاکاجانه ؟

که ریا خرقه په غاړه
زلمرم تسبیح د سکر
د تزویر او ریا چغې
ستا په خیر نشم کړای ذکر

را ته وایه زما جانه
ستاپری خه دی کاکاجانه ؟

حـا جت نشته ستا وینا ته
وړ ه نه یم پوهیدای شم
چې خه کړ مه پری پوهیږم
ښه اوبد خپل درك کوای شم
خفه مه شی مهربانه
ستاپري خه دی کاکاجانه ؟

ستا په دی کې گټه خه ده
چې په هر چا تبصري کړي ؟
د ترو و د سچ په خیر ي
سرا و پښې و هی نخری کړی
که کړم رنگه یا ودانه
ستاپری خه دی کاکا جانه ؟

دي کې تا ته خه تاوان دي
چې د چا غیبت و نه کړی ؟
پته خوله ژوند اختیار کړی
په یو بل تهمت و نه کړی ؟

د ا پو ښتنه کړم له تانه
ستا پری خه دی کا کا جانه ؟

ته کو ښښ و کړه چې ښه شی
خلك د ی و کو ي پا لنه
لاس او پښی دی ښکلوي تل
شپه او و رځ دي کړي ستاینه

خیر که ز ه کړ سه نا دا نه
ستا پري خه دي کا کا جانه ؟

د ا نه شعر د ی نـــه لیکنه
د سپین غـــر لو ړ ه بنا د ه
چې دي ویلی اوسی یې او ر ه
ا نـــعکا س ستا د و ینا د ه

گیله سند سه شی (کبرا)نه
ستا پری خه دي کا کاجانه ؟

۱۳۴۶/۷/۵

خو ر یانی

# د زلفو تار

( کرد گلو کړه چې سیمه دی گلزارشي )
په ښه خوي در ته خپل دوست دښمن په کار شي
ښه کوه تل پخپل ژوند چې پس له مرگه
نوي وارهدي په بیلتون کې ناکرارشي
خو دي وس د خورسیري بد ونکړي
په بدی به خپل پردي درنه بیزارشي
د حسد او د کینی اور ونه سړه کړه
هسی نه چه پری ستی دي خپل روزگارشي
د استل دی چې کر ی هغه به ریبی
(اعزی مه کره چې پښو کې به دی خارشي )

چې اغزي کړي په باغ کې ګلان باسي
شرمنده به اخر د ارنګه ماليار شي
زمانه به يې پر دده جګه کړي له عيبو
څه شو نن که يې له قدرته خلک په ډار شي
چې يې حق د پښتنو دي غصب کړي
په دې پوه شي په بلا به ګرفتار شي
ارزوناوي به پلو کړي له سخ لري
په مونږ خوارو به دا توره شپه سهار شي
د پښتو د عشق او ميني شراب راکړه
چه مستي شم شور او زوږ ژوند مې سينګار شي
د اوېده او سسته وينه مې رګو کې
حرکت او فعاليت ته په تلوار شي
نوی کال نوی هوا نوی فضا ده
نوی خيال شم رانه لري زوړ خمار شي
نوي سر، نوی نغمه، نوی اهنګ شم
زړه بلبل مې نوی ګل ته په چغار شي
ماضي غم، حال انديښنه چې استقبال مو
خدای دې نه کړي بل په لاس کې خوار و زار شي

هسی نه چې گران بابادخاو روغېږ کې
د پښتو ن له تېو له نسله توبگا ر شی
نو: د رحمان بچورو باخی سره یوشی
چې ظالم مو له وحدت نه په کو کار شی
د (کبرا) سر کش احساسه لرپه خودشه
هسی نه چې کوم جناب درته په قارشی
په احتیاط یې او ر بل واړوه له مخې
نه چې لاس دی غوځ دزلفو په تورتار شی

۲۳ ر ۱ ر ۱۳۴۸ کابل
د رحمان بابا مشاعری په لړ کې

## غزل

د لته خرڅيږي شرافت په غيران
عزت ، ابرو او صدا قت په غيران
ناموس ګروشي د پولاو په مينه
ځي له انسانه کرامت په غيران
د نه سړي نه ښه سړي جوړوي
چوکۍ ، منصب او وکالت په غيران
په منبر وعظ کړي خوږنګی دپاره
پلوري مذهب او ديانت په غيران
چې غيران نه وي خپل پرديشي له تا
د دوست اشنا تش اشارت په غيران
شريف شرف ، عفيف‌عفت خرڅوي
زاهدان زهد او عبادت په غيران
وجدان کړي خرڅ دخوپيسودپاره
قطري سپيڅلي امانت په غيران
د چاپه قول او وعده وتپه نه وځي
وعده ي ساتيږي هرساعت په غيران
(کبرا) تو به له هغو خلکو تو به
چې خرڅوي خپل متانت په غيران

۱۳۵۲/۱۲/۱۸
خوږ يانی

# زما جهان

ز ما جهان دي د درد و نو جها ن
د څو ا نیمر کو ا ر ما نو نو جها ن
ز ما د نیا ستا له د نیا جد ا د ه
ستاد خو ښی ز ما د غمو نو جها ن
تاڅنی ځان په خرمستی کې و رك‌دي
ما و ريتوي ز ما داو ر و نو جها ن
ته د خو ښی نه ا تهنو نه کو ي
ز ما د نیا د کړ ا و نو جها ن

ته بید اری کې هم میلی کوای شی
زما نه پاتی د خوبو نوجهان
زما د نیا د استا په خیري نه ده
د بی غمی ، هوس نازو نوجهان
زما نشو کې زرد ردونه پرا ته
ستا د مستی او تیند کو نوجهان
ما ته وږمشان موسیدل گران ښکاری
ستا د خندا د جها نو نوجهان
ستر گو دریاب کې سی غمونه نغښتی
ستر گی د استا د هوسو نوجهان
زما جهان که غواړي وپیژنی
د ویر ، ما تم ، سرواهو نوجهان
ښنکه چه تاو یلی هسی نه ده
ډک له خوښی خوبو خیالو نوجهان
د بل له حال نه خبرید لا ي شمه
ځکه یم خپله د ویر و نوجهان

۱۳۵۱/۳/۲۰
کابل پښتوټولنه

# ویرانه جزیره

د غمو نو ا ند یښنو سر ه همر ا شوم
د ژوندون ارزومی بادیو ړه تنها شوم
لو یه خدایه ستاپه دي لو یه د نیا کې
راپه برخه سی شودرد،مورد ژړا شوم
یوګړی هم زما روح په کرارنه شو
د رد ید لی ،ربړیدلی په بلا شوم
بی وقوفو اوبی دردو په تو لګی کې
د هرکس اودناکس دخولی خندا شوم
خود غرضو په تو ر تمه تو فا نو کې
له نظرپریوتی خا وري د هوا شوم
څو ر وي سی کړوي سی غمه وي سی
د بی شرسو په نظر پو چه معنی شوم
د لته لري په و یرا نه جز یره کې
څولیوانو ته خوږه غوړه حلوا شوم
دما یو سوارزوګا نو په دریاب کې
د سا هیا نو نهنګانو ته غذ ا شو م

۲۸ر۹ر۱۳۵۰

کابل: پروان سینه

# د وخت ایجاب

په تقاضا د زمانی نو ر او سیدل دي په کار
د نوي عصر په رمزونو پوهيدل دي په کار
هواشوه نوي، ژوند شونوي ، هرڅه نوي ښکاري
سوېلره هم دژوندالکارنوي کیدل دي په کار
فضاده مسته ، ژرونه مست، کاینات مست ښکاريږي
دی مست سوسم کې، زياتی کارته مستيدل دي پکار
پښتنو د غه د تخنيک علمی پيړی ده ګو ر ه
د مدنيت د معراج خواته خوزيدل د ي په کار
علم رڼاده جها لت تو ر و تيا ر و د پا ر ه
پتنګ په ځيرله دي رڼانه جاريدل دي په کار
ا ي په او هامو خرافاتو کې ا خته پښتنو!
نو ر خر افات او بدو دونه پرېښودل دي په کار

نوي فیلمونه دي راوړي شلم قرن سو ړ ته
نو رد ما ضي بدروا جونه بدلول دي په کار
ریاکاري او دتزو یر پردې کړي څیري ګوري
پا څې د حق اوحقیقت څرګندیدل د ي پکا ر
و ر کړي لو یدلو ته دلطف او د کرم لا سو نه
په بده و ر ځ د غر یبانو رحمیدل دي په کا ر
اي ! دخوشحال او ایمل‌خان بچورو غو ر و کړ ي
ستاسې په‌دغه و رځو خدایږو و ژړیدل د ي پکا ر
نه‌وایم داچه له تعصبه څخه کار و ا خله‌ته
پښتون‌یې تاته‌په پښتو کې‌ګړ یدل دي په‌کا ر
(مظهري) تا سو ته‌دنو ي ژو ند پیغام را و ړي
دخو ب‌خمار و ختو نه تیرشول و پښیدل‌دي پکار

۸ / ۱ / ۱۳۴۲
جلال اباد

# پښتنو خوېندو ورونو ته

پښتنو خویندو، ورونو واوري دا یوځو خبري
د زړه په مینه د ر ته کړ مه د پېرزو خبري
تاسو ته ښائی خپل وطن د محصول قدر وکړي
څو پوري کړي به د کالر او د شپو خبري؟
څو به په غاړه نکتیائی د پل د ستور ګرځوي؟
وکړي په خپلو کی ځېلو اولو پټو خبري

په تش فیشن کی مدنیت او ښکلا نه شته و او ري
د غه دی و ا ړه د یو بل د تیر ایستو خبري
پښتنو خو یند و خپه مه شی کړمه تاسو ته هم
پښتنی پت ، مای تهذ یب او د د و دو خبر ي
په تش هو س خپل افغا نی تهذیب گنا هسه گڼی
بی ځاي تقلید کې شته د ژو ند د ړ نګیدو خبري
ښکلی لباس د ي علمیت د ژ و ندا نه د پا ر ه
په بی علمی کی شته د هر راز کړیدو خبر ي
خپل افغانی تهذیب د بل په تهذیب مه بدلوي
شته په بد لو ن کې دضمیر د خر خیدو خبر ي
تاسوخو او ر ی د دنیاقاسو نه خه ر و زګار کړي
ځمکه لاخه‌چی کړي‌دستو ر و دختو خـــــبر ي
په‌افغانی تهذیب پـه‌و یاړي(مظهري) په ژو ند کې
نو ر د کوي‌تل د پر دو د ډ انس نشو خبر ي

۱۳۴۳/۱۱/۲۹
جلال‌آباد

# ښارې ژوند

۱۳۴۵/۱۲/۲۹

جلال آباد

عمر تیر شو په کړاو د یره ژړا کې
له دي ژوند ځینی‌یم خوښه په فنا کې
له ښاري ریائی ژوندنه سی زړه تور دي
پاکه ربه ژوندون راکړه په صحرا کې
تظاهر په رنګ سینګار بنګلی به څه کړم
یو دلوښو کوډلی را کړه بیدیا کې
په دي دنګو ماڼی ګانو کې جفاده
وفا نه شته په ښاري خپل او آشنا کې
په یوبل باندي تیري او تجاوز دي
ځکه خوښه یم له ښارلري دنیا کې
خیانتونه، فریبونه دلته ډیر دي
دکینی اورونه بل دي په هرخوا کې
په ښتو جنبو یې سترګی پټی کړ ي
بد معاشی یی ده زده کړي سینما کې
یوله لوړي هلاکیږي بل خندیږي
انسانی مینه او حس نه شته په چا کې
چا د پاکو هیلو قدر دلته نشته
خړ ګردونه دحسرت دي په فضا کې

# برابري

شه ښکلی هوا د ه ښايسته‌زرغون ټول غرونه‌دي
فرش‌د ګلو خپور‌دي‌په‌(بګیو) کې‌خوشحال زړونه‌دي
ویري اند یښنی نه شته عجیبه شان دنیا ده دا
ورځ یی په خندا او په آرامه یې خوبونه دي
دلته د خوښۍ نا وي په ښکلوجامو ښکلی ده
سوردخفګان بوره ده په‌کورکی‌یې ویرونه دي
هره ورځ خنداوي چکرونه دي پارکونو کې
ټولەشپه نایټ‌کلب کې ګډاګانی او ډانسونه‌دي
ښه او بدښکاره دي‌چاپلوسی، ریا او دروغ نشته
نه دچا تر شا دلته غیبت او تهمتونه دي
دلته د یوبل په حق تیری او تجاوز نشته
نه د خوارله غوښو جوړ بڼای ته ګبابونه دی

فلیپین دبګیو ښار
د فبروری ۲۲-۱۹۶۸

سینه پټه نه ده نه جادو او تاویزونه شته
نه د چا له ویري پټ پټوني تکلیفونه دي
دلته د چاخوله تړلی نه ده قلم مات نه دي
نه دآزادۍ په نامه ډک ترینه جیلونه دي
دلته (به توچه‌شولیت بخو پردیت‌به‌کو) نشته
یو بل سره سرسته محبت او کومکونه دي
دلته دچاپلارنیکه وطن خوک لوټ کوای‌نشی
نه د سیراثی قدرت او زور خه بندیزونه دي
دلته تش په نوم دیموکراسی او غولول نشته
نه کتاب قلم، سخکې ایستلی‌چاتانکونه دي
دلته فیوډالان دچاخدایان چیري کیدای نشی
نه دخوارله وینو جوړ بی‌بی ته لاکتونه دي
دلته دذوقونو او فکرونو سره کیدل نشته
دلته و ینې‌احساس ته جیلخانی اونه قیدونه‌دي
دلته د بشر په نامه قدر د انسان کیږي
نه چې بهاي‌شه او په‌مظلوم،غریب‌ظلمونه دي

گران افغانستانه ستاپه سینه دي سوگند زما
ناسته (مظهري)دلته له تاسره یې فکرونه دي

# د سکروټو ځا

خوږ رځی ژوندون دي ترابده بقا نه لري
باد په خیر تیریږي، بې دوامه وفا نه لري
نوم د ژوندانه خو پروت د مرګ قوي پنجو کې دي
ژوند کې د نومږنو یا دیدل څه معنی نه لري
هغوی چې مړه کیږي په بستر د عیش عشرت کښې یا
خپل پردي ته سترګې د کتو په عقبی نه لري
مړه په حقیقت کې هغه خلک دي چې په ژوند کې هم
مغز کښې ولولې، زړه کې سکروټو ځا نه لري
مرګ د شرافت کې د ژوندون اصلي بنیاد نغښتی
ژوند د ټیټو سترګو هیڅ ارزښت او ښکلا نه لري

١٢ / ٨ / ١٣٤٥
جلال آباد

# هتکړه

ستا له ادا ډ کـی پستی خبری
ساته دژوند صحیح سمو ن را بخښی
ستا تر یو کتل نا مهر با نه و ضع
ساته سرمشق دبل ژو ند ون رابخښی
ستا هتکړ ی او ځنځیر و نه را ته
له امید و نوډك بیلتو ن را بخښی
د هدف لیا ر کې ستاترخی خبر ی
ځلا ند مشعل دزړه رو غتون را بخښی
سیلاب د هجر کې ملا ح د ا مید
لیاردوصال او د خلاصون را بخښی
ته ملا ست نه یې غما زه ! ، ا شنا
پخپله خوښه زړه چاودون ر ا بخښی
د ناروغی بستر کړ او ا ند یښنی
دغه سوغات حال دپښتون رابخښی

۲۵ ر ۸ ر ۱۳٦

جلال آباد

# خپلې مور ته

فلپین ( مانیلا )

۲۵ فبروري ۱۹۶۸

ستا په بېلتانه کې مې له سترګو څخه سیلاب سوري!
کاشکې یو ځل وو یمه ستا بشر په خواب سوري!
و صل کې مې هو مره فکر ستا ګر انښت ته نه درلود
او س چې در نه لرې یم زړګی مې دی خر اب سو ري!
خدایږو که به خوښه یم دنو ر و چار قر بان با ندي
خو ر دی ماته هر څه ځینی ستاقهر او عتاب سوري!
ستا په بېلتا نه کې د هجر ا ن سندر ي لیکمه
خوسر ه شپه ملګري دي قلم ، کاغذ ، کتاب ، سوري!
سترګی مې څلور شوي انتظار با زا ر مې لوټ شو لو
غو ښې مې دزړه شوي دفراق په اوړ کباب سوري!
څه مې د ه ګنا ه و لی پو ښتنه مې د حال نکړ ي!
رحم په پیو ز لو لري اجرا و ثو اب مو ر ي!
هیر ه در څخه شو م او که ته کوم بل سبب لري؟
دا چې نه ر ا لیږ ي ته زما د لیک ځواب سوري!

خیر که ( مظهري ) لو ر دي مایوسه نا امیده کړ ه
ته ا و سې خو شاله رب دي سا ته له عذا ب سوري




دا ته مه کوه کیسې د عشق او مینې
یم پوه شوي دي دا وخت د تیرا یستنې
د وفا، غیرت، سردی لا فوکې نغښتې
بد بختي، جفا، خیانت او غولونې
په نامه د پاک سپېڅلي محبت نور
مه تیر باسه خوشباور معصومه نجونې
ستا په خیر ډیرو پري ایښې نیمه لارکې
زخمي زړه ستړي وجود سترګې نم جنې
رښتیا نې سینه غمې دي دا لما سو
سوزند اي نشي څکه څکي دي شګلنې
دیوي کړی هوس دپاره خلـــــه ؟؟
تو روي د شرافت سپینې لمنـــــــی ؟
په ظاهر د قند پیالې له زهرو ډکــــی
د انسان جامه کې کاندي خیرونې
خود به لوبې په احساس هیلو او زړو کړي
څکه خلاص یې د وجدان له پاملرنې
د هوس په نیلي سوره لږ په خو د شه
وویریږه لږ له ښکته پریو تنــــی
زما نه به تا پخپله ور ګذار کــــړي
کوښښ مه کړه د بل لارکې د کیندنې

کابل پروان مینه

٥٣/٣/١٨

# دغریب آواز

غریب بی وسه خواروزاریمه زه
په زړه زهیر په تن بیمار یمه زه
خوښی خندا په مفهوم نه پوهیږم
اوښکی می څاڅی په کوکاریمه زه
د ژمی یخ می اندامونه لړزي
اوري گرمی لره ښه یاریمه زه

لوي او واړه واته نفرت په ستر ګو
ګوري هر یو د پاره عاریمه زه

د د نګو د نګوماڼی ګانو تر خوا
په مځکه پروت سپوره غبار یمه زه

د صاحبانو هر خدمت د پاره
لاس په نامه و لاړ تیار یمه زه

تول ورځ پیټی چلوم تر ماښام
بیاهم په تن لوڅ او نهار یمه زه

ماشوم بچیان واته له لوږي ژاړي
له ژوندانه څنی بیزار یمه زه

د اکوم قانون دی‌چې بادارسي‌هرڅه
لري مزدور پریشان خوار یمه زه؟

۱۳۵۰
کابل

۱۳۵۳/۱۰/۲
کابل تایمنی واټ

# خیالي دلداره

ای ز ما خیالي دلداره چیرته یې ؟
دژوندون ښکلي بهاره چیرته یې ؟
تصور کاسره سي ستاله تصویر ډکـــــه
د خیالونو پریواره چیرته یې ؟
په هر خوا دي لټوم نه دي مومم
ځاي را وښایه نګاره چیرته یې ؟

نا ارامه د رد یدلی هر خوا گرځم
دلاارامه ژوند قرار ه چیرته يې ؟
سا چه څرنګ پخپل فکر یې جوړ کړي
واقعي‌بی مثله یار ه چیر ته يې ؟
بی حیاوسی تریخ کړي‌خوږ ژوندون‌دي
د غلیم د سترګو خار ه چیرته يې ؟
د بی درد و له نظره یم پر یوتی
راشه راشه یم بیماره چیرته يې ؟
چې سی خیال چې‌سی‌تعبیر یی د خوبونو
پټ له ما شمس النهار ه چیرته يې ؟
له دي سپکو چې اظهار راته د عشق کړي
یم‌بی زار ه باوقار ه چیرته يې ؟
تهد ید یږ م‌له هر خوا سزا حمت دي
وسی ژغوره رب د پاره‌چیرته يې ؟
طراوت په بڼ سی ګډ د خزان باد شو
رژوي سی ګلعزاره چیرته يې ؟
(مظهري) دي سونداي نشی‌که هرخوسره
ګرځی هر لورنا قراره چیرته يې ؟

# د شاعر غزل

۱۳۴۶/۸/۱۵

جلال آ باد

خو به له و یر ې د غما ز ه غر یږ لی نشم
زړه به سی ډ ک وي ا و له ډا ر به ژ ړیدلی نشم

کړ م اعترا ف پخپله سینه څه ګناه به نه وي
که لړ م سینه له خپل عزمه ا و ښتلی نشم

دسر په بیه به یې سا تم دا اعلان دي ز ما
سو رچه د سینی سرګله و یري پر یښو دلی نشم

خو به سیلاب دمایو سی کې سی کښتی د ا مید
غرقیږي رب د پاره نو ر طاقت کو لا ي نشم

راو ړه ساقي‌په جاریې ځکه‌چه رسوا شمه نو ر
د ا نزو ا په ګنج کې غلی کښېنستلی نشم

سازدي کړه‌نوي پیالی ډکی کړه له نوو میو
نو رپه زاړه خمار آهنګ ځان تیرایستلی نشم

یمه ر ا غلی پخپل ذوق خپله د نیا لو ټوم
پوه شه په ستر ګو بر ګو و دی و یر یدلی‌نشم

زیاتی په ستر ګو لیا ر ګومه او و رځمه و رته
خیر که ظالم سی پښی ټر لی دي و ر تللی نشم

# مینه په دې ښارکې

په دي ښار کې مینه دروغ او غولول دي

د یو بل په حیثیت لوبی کول دي

دلته صدق او صفا نشته دي په زړو کې

تش د خولی یوه ګړی قربانیدل دي

مصنوعي ګلان دي ډک له تصنع نه

طبیعي ښکلا تر پښو لاندي کیدل دي

د لته پیغلو سره مینه د دولت د د
دمو تهر او د بنګلو غلا سیدل دي
زه وتا ته کوهی کینه ته وسا ته
بس په چل او په فریب روز ګار کول دي
د لته هر سړي مطلبه پوري یار دي
بی مطلبه له یوبل بیزار یدل دي
دي د اسو نه دتنګی خوار ه هر خوا ته
د معصومو بی ګنا هو رانیول دي
د انسان جامه کې ښکاري خو عمل یې
د لیوه کوډ او شرمنږ پیښنی کول دي
چا د پا کو هیلو قدر د لته نشته
د کثیف خواهش په ډنډ کې ډوبیدل دي
داسی سینه داسی عشق به څوک څه کړي
چې انجام یې د دول عمر زوریدل دي
هی تو به د اډول خلکوله دوستی نه
چې حاصل یې بد نامی او شرمیدل دي

۱۳۵۱/ ۷ /۲۵
کابل : نوی ښار

# شهید غم

درب د پاره ځورول مه کوه
په امیدوسی لوبول مه کوه
چې د ښو وس دې چاته نه رسیږي
تو به د بدو رسول مه کوه
خیر که زخمی زړونوعلاج نشی کړای
په بیرحمی یې ځیرول مه کوه
خیر که منزل ته یې رسولی نشي
په نیمه لیار یې شنډول مه کوه

زما توبه ستا له خیر اته ځینی
سپی دي ایسار کړه لمسول مه کوه
وعدی د وصل را کوی خو وفا
پری کوای نشی غولول مه کوه
زه گنهگار ه ملا مته تپیك ده
ته مهربانشه درول مه کوه
صحیح سنم چې زه کم عقله یمه
ته خوهو ښیار یې رټول مه کوه
د ځوانیمرگوار زوگانو ناوي
بیا به ژوندی شی خندول مه کوه
وریې وریې سلگۍ وهی پرته ده
زما له غیږې بیلول مه کوه
ما لمبولی ده پخپلو اوښکو
بس په زمزم یې لمبول مه کوه
د امید پیغله سی شهیده ښکاري
په سپین کفن کې خښول مه کوه

جلال اباد

۱۳۴۸/۸/۱۸

# سنایاد

فیلپین ( باین‌بانگ )

۲۲ جنوری ۱۹۶۸

هر ه خو ا تر ا وتازه ټول چمن زا ردي
( باین‌بانګ ) کې خزان نشته تل بهاردي
په مستۍاو شو راو زو ږ يې دي سيند و نه
له ښا يسته‌ګلو يې ډ ك‌كنج ا و كنار دي
سا عتيرى د ي خند اګا نى نڅاډ يرې
جو ړ په سيزدسرو اوشنو پيالو كتار د ي
طبيعت ښكلا دي ډيري خو د ز ړ و نو
ښكلا نشته ځكه زړه‌سى نا كر ا ر د ي
ستا لـه ستر ګــو صد قه شم بى لتا نه
خو ښى نلرم په غم سى ټول‌روزګاردي
خو ر م سو ګند ستاپه ښكلا او خپلى سينى
د ګلا نوډك چمن ر اته خار زا ر د ي
ستا په يا دله سترګو ا وښكى تو يو مه
سرشار روح سى نارام تن سى بيما ر د ي

# ارمان نېستي

ژاړمه افسوس چې په ژاړمې څوك خبرېږي نه
سوزمه ورتيږم په بدحالۍ څوك رحمېږي نه
ناسته يم يوازې لاس گريوان يم د غم وسره
نه لرمه هيڅوك ربه تاته م سوال قبلېږي نه
وينې سې دزړه څښي او په غم وغمو گوري بيا
داځرنگه مترگى دي چې هيڅانه شرمېږي نه؟
شپې په انديښنو ورځې په غم خوشحالى نشته دي
كله به شم خلاصه له دې غم نه هيڅ وركېږي نه
نه يې واقعي طبيب دارو دي ډك له زهر و دي
وژني مې په چل پوه شومه رنځ سې هيڅ روغېږي نه
زه لكه بسمل مارغه په وينو كې لمبېږمه
ستا د خوشحالى له نغمو يو ذره كمېږي نه

۱۰ ر ۳ ر ۱۳۴۹

جلال اباد

# د سبکل ښتر گی

سوزم ورتېږم بې‌وفا درپسې
ناله فریاد کړم واویلا درپسې

دزړه داشوم مې دکوګل زانګو کې
را اخستی ځیل کوي ژاړا درپسې

څوڅې غوڅې مې له چشمانو څڅه
په بار خو پر یوت زړه زما د رپسې

د ستو ر وستر ګی ستا د سترګو په یاد
شو لی شبکو ری نا بینا د ر پسې

په میخانو کې ستا د شونډو په یا د
نسکو ر پر ا ته قد ح مینا د ر پسې

پیغله سپو ږ مې ستا د لید و په هیله
هسك ته ختلی د ه اشنا د ر پسې

لمر له خجلته مخ په و ریځو کړېږ
له شرمه چیچی ښا بڼ بریښنا د رپسې

سځکی بخمل شوي او ګلو نه ښا ر ي
لیا ري د ښار او د صحرا د رپسې

غر و او ر غوستا هر کلی د پا ر ه
په تن جامی کړي د د ډیبا د رپسې

د جذا بيت کورکې دغم ژړاده
و و تی سترگی د ښکلا د ر پسی

خیال تصور کې بې د ير ښکلی جوړکړی
فکر او قلم و و يست (کبرا) دړ پسی

۲۵ ر ۱ ر ۱۳۵۲
کابل: باغ بالامينه

چې سو راورشم ساقي! شراب سو ر رنګه‌لري که‌نه ؟

ځواني ده د مستي پيالي ترڅنګ‌لري که نه؟

چې ستوري په نڅا کړي او سپوږمۍ په اتڼ‌سر

سطربه وايه دارنګ ناي اوچنګ‌لري که نه ؟

زه‌ستادعشق په پاس‌خودرته شمع شوم سوزېدم

ر ښتياوا يه ايثار چې د پتنګ لري که نه؟

د رند و په تولګی کې خمارناسته ګناه بولم

پيا لو کې دي نشوته‌سي خوشرنګ‌لري که نه؟

ترڅوبه‌کړي د نازخندا په ماتوزخمی زړونو؟

دسهر اوسحبت کتل‌کوم د رنګ لري‌که له ؟

داماچې د وصال‌له تخته‌کوزغورزول غواړي

اي‌وخته! د ي رقيب ته‌کوم‌ګړنګ‌لري‌که نه؟

بلبله‌تانه جا رد (مظهری ) د خيال ګلشن ته

د نو و پسر لو نو ي ا هنګ‌لري که نه ؟

۱۳ر۱۲ر۱۳۵۳

جلال اباد

# کلیسا او بتخانه

زړګی می وائی دادنیا او داجهان پر یږده
و تښتهلري د بشر په نوم حیوان پر یږده
دبشریت په نوم دوکی او شوکماری کړي تر څو ؟
د شر مخانو سرهمله شه انسانان پر یږده
و څیرهزړونه دبی رحموا او بی پتو خلکو
سترګی یې وکاږه رانده دابیدردان پر یږده
که اسلامیت معنی تهمت، بی انصافی، ظلم وي
ودانګه اورته له اغزوډک ګلستان پر یږده
مسجد نه د رومه کلیسا او بتخانه وسیزه
څه خراباتته دادستړي ژونډداستان پر یږده
ساقی ته وژاړه جګی جګی زاري یې وکړه
د تظاهر تسبیح په لاس ریاکاران پر یږده
تش په لمونځو نواو سجدو مسلم کیداي نشی څوک
سمه لارنیسه کړه لاره د شیطان پر یږده
د کسب ګرکارګر دلاس پولی په مینه ښکل کړه
خانان پیران او داخونخوارهفیوډالان پر یږده
درومه صحراته ځانتهلوخوکوډلی کړه جوړه
د بل په وینودښایسته بنګلوسامان پر یږده

۱۳۵۳/۳/۸

کابل نوی ښار

# څوك یم؟

دمات زړګوټي آه فریا د اوفغان څه ولیکم
د ز ند ګی له خاطر اتو د استان څه ولیکم
کله اثر کړي په بی رحمو مهربان نشته دي
هسی بی دردو ته دخپل زړه ارمان څه ولیکم
زما د او ښکو سیلا بو نه چې څوك نه غر قوي
زه به د داسی بی ساحله طوفا ن څه و لیکم

۱۵ ر ۳ ر ۱۳۴۵

جلال ا با د

زما کعبه دیارکوخه بل خواسجده نشم کړ اي
نو ره پا کی په د ضمیر او وجدان څه و لیکم
پوه پا کتر ان چې سی‌در نځ دارو کولاي‌نشی
زه‌په‌نسخه دخپل علاج او درمان څه و لیکم
ساقی د رب د پاره ژرشه پیالی و کړ نګوه
دي‌سوي‌ژوندیم ستړي کړ ي قربان‌څه ولیکم
رنګ‌سی‌تک‌ژیړشونی‌سی‌وچی، حال‌ابتردي‌زما
ددو اړو سترګوپه داو پکو باران څه و لیکم
څه‌چې تیرېږی په خوارانو تاسوټول‌یې وینی
د زمانی د نا کرد واین وا ن څه ولیکم
خولی‌له سی‌راشی خوپه ژبه یې ویلی نشم
سترګی تړلی قلم مات دي بیان څه ولیکم

دحوادثو په طوفان کې (مظهري) ور که‌ده
د رقیبا نو مظا لم به په ځا ن څه ولیکم

# رنګین خوب

خوب مې لیده چې شین چمن وي او ډګلو ګېډۍ

شفق زړه چاودي انتظار کوي د ښکلې سپوږمۍ

داو بوټه نڅوي سپینې ښتې په کې یو خوابل خوا

وهي ټوپونه له مستۍ لکه اوتره هوسۍ

د ونې یو خواته د نښترو د نګو ونو په سر

اوریدل کېږي د مرغانو زړه راښکونکې چړۍ

ساقي په لاس نیولی جام وي او ستونه کوي

زوړ ځوان یې لمانځي ور ته وایي په خندا او خوښۍ

راوړه د رڼا رشم ستا تر خو او بو بلاوا خلم
چې شو راو زو ږ شم تر ا نه ديوې ښې زندګي
کائينات مست له ځان بې خو ده او نشه نشه وي
اچوی لاس دګل کر يو ان ته د نيسم بو ږ ېکې
د سترېا نو سا زا وا ز ته ښکلې پېغلې نا ځې
ځلمی خنديږي ناکراره وي له ډېري مستۍ
انس او الفت پاکی فضاکې دزړه خو اله کوي
له لاسو ما تی وي غيبت ،تهمت، ر يا هتکړ ی
جو ړوي محفل د محبت د سپېڅلتياحرم کې
غاړه غړې شي ټو ل دو ستان نه وي حسد د ښمنی
جاراو قربان و ي صميميت او واقعي مينه وي
نه دروغ ،فريب وي نه چلو نه نه تزو ير د و رنګې
د اتحا د صحيح سمو ن ځلا ند ه تو ره باندی
د نفاق سر غو ځوي و يرو ي د غمو په ا بې
احساس بيدارشی جذباتی شم ، دساقي له لاسه
ا خلم پيالی،ساتو م توبې ،شلوم دو د ونو رسې

يو ځيز سی ستر کو ته ځلو رشي دو ه پنځه او اته
چو رلم تېند ک ځو رم له غمو شم بيګانه او پر دی

# رببه!

۱۳۵۲/۳/۱۲

کابل نوی ښار

غوښی د تن می بی غوری په اور وړ تیږي مدام
له دواړو سترګو می د او ښکو رود بهیږي مدام
د زړه ما شوم می ناقراره دي ارام نه لري
لکه بسمل مارغه په وینو کی شتهیږي مدام
ځکه اسمان او کائینات می تر نظره همیش
ښکا ري غمجن آه او فریاد کوي کړیږي مدام
زما دخوا نوا رما نو نو ارزګا نونا وي
دمایوسی ناو لی دیو په لاس مړو ږیږي مدام
داکوم انصاف، څرنګی قانون او عدالت دي ربه!
چی یو خندانه نه مړیږي بل ژړیږي، مدام؟
ربه له تانه می ددغه سوال ځواب غواړمه
ولی دي یو بنده خوشحال اوبل ځو ریږی مدام؟

ستا دبی و زلو مخلوقاتو پاکی هیلی ولی
ستاد زور سندبنده پەلاس کی‌نابود یږي مدام ؟
ولی دیو تعداد خوا را نو بی قد ر تو خلکو
دهیلو کور دزور پەیوم‌باندي نړیږي مدام؟

ولی دګن شمیر معصو مو انسانا نو وجود
لکه لیانځکه‌دیو بل پەلاس لویږي‌مدام؟

# د سفر ملګری

ستا یا د ونو قافلی راسره ملی دي
تنها نه یم په سفرته راسره یې
په پردوکې می د سترګو ته ځلیږي
بل څه نه وینم بس ته سی منظره یې
بی تانه یم په هیڅ ځاي ولی‌به ژارم
ته وږمی‌په شان‌په هرلوري خوره‌یې

د استایاد لکه او به او زه ساهی یم
ته می‌روح یې، ته سی سا،ته‌می‌اسره یې
ته طبیب زما د رنځ ته سی دوایې
ته سی ژونداو د خوښیو شمره یې
انعکاس ستادزړه‌وړونکی اوازهرځای
راسیري سی ترغوږخوږه نعره‌یې
خیال‌دي زماپه‌زړه‌دماغ کې ځای نیولی
خیر که جسماً ته له مالري د یره یې
د استامینه شوه‌ا لهام زما د شعر
گرانه ته سی د شعرونوشراره یې
راځه هروخت د یارخیاله ستړي مه‌شی
(مظهري) د سترگوتوردزړه کتره یې

# لوټ شوي امېدونه

۱۸ر۲ر۱۳۵۲

کابل نوی ښار

او ښکې سی څڅېږي په ژړايمه
غم اوند ايښنو سره اشنا يمه
هيلي شوي مايوسه اميد ونه لوټ
د رد اوبد بختی سره همرايمه
هرخواته چې ګورم کړاوونه دي
ژوند نه مړه خوښه په فنا يمه
درپه درپريشانه خوارهزاره شوم
ځکه خند نی نن د هر چا يمه

او رداستبداد سی د ز ړ کی کتري
سیز ي په فغان ا و و ا و یلایمه
پا کی او سپیڅلی ارزو ګا نی سی
خا ور ي ایري کیږ ي په بلایمه

نشته دي ا حسا س ا و عاطفه چا کې
ځکه لا س په سرله د ي د نیا یمه

چار ي دلیو ه کا د انسان په نوم
خو ښه له د ي خلکو نه تنهایمه
ګل ن شو ه غو ټۍ دپا کو هیلو سی
ژ ا ړ م بی نصیبه له خند ا یمه

کړمه یې ذر ه و ړ ه بخري شوم
هسې تش په نوم باند ي (کبر ا)یمه

# سور لباس

ستا گلان نه دی باغوانه خفه نه شې
د ا ز ما د زړه قطرې دی‌په‌لمن کې
سرگ یې ښه و ګڼه ژوند دبېلتانه نه
فرهاد سرځکه اره کړ په کوهکن کې
په ر ښتیا چې رنج اوګنج سر ه تړ لي
ښامار ځکه لعل نیو لی په د هن کې
کړي ژړازماپه حال دآسمان ستو ر ي
پرخه نه د ه‌چې و ریږی په ګلشن کې
په رښتیا که زه‌مینه وم دننګ خپل
سر به‌غوڅ کړ م‌روح به‌پرې‌نه‌ږدم‌په‌تن کې
ز ه‌به ستا یمه پښتو ا و پښتو نو ا له
تر هغې چې سې ساګرځي په بدن کې
پس‌له مرګه مې‌په قبر تو کړی لا ړ ی
که سې و کړه‌بې ننګی پخپل وطن کې
د وطن د مینا نو سو رلبا س د ی
نه ځی نه ځی‌ګو رستان‌ته سپین کفن کې

« مظهري » ده خپل آزادو طن کې‌خو ښه　　　　۱۳۴۶/۵/۲۰

غلا سی کله منی شي په ز یستن کې　　　　خوږیانی



را ځه اشنادسینې ولولوسره را ځه
تورتم ته سې د خیال دپلوشوسره راځه
سوزیږمه ورتیږم ستادهجرسرولمبوکی
د وصل سمند رشه د موجوسره راځه

دتېر وخت پيمانو نه پام چې هېر درځنې نه شي
را ځه د هغو ورځو دو عدو سره را ځه
را ځه زمادسوي زړه خبرې لېږې واوره
ګيلې زما که آورې حوصلو سره را ځه
ځان و ينن کړه ستر ګی و غړوه پاڅېږه له خوبه
راځه دلته روښانو نظرو سره را ځه
داو رسجمرسی زړه شو هم‌سی ستر ګی نظر بازی
چې نه شی د نظره سپېلنو سره را ځه
يا پرېږده سړ يتوب د مينتو بنو م چې وانخلی
ياخيری کړه ګريوان دليو نو سره را ځه
يا کښينه چير ته غلی دمحفله ځنی لرې
يا وڅښه لږ شراب او د نشؤ سره را ځه
نتکیٔ، تيک او پيز وان درڅخه نه غوارم اشنا
کړ ی عصر تقاضاساده جاسو سره را ځه
تبعيض او له بی ځايه تعصبه لاس په‌سر يم
وحدت او د يو والی ترانو سره را ځه

له تانه «مظهری» دغه ارزو لری په زړه کې
په خوله دا الهانيت خو ږو نغمو سره را ځه

# د بهسود په پله

د بهسود په پله مې ولیدله حوره
نمونه وه د پاکۍ ډکه له نوره
څوارلسمه سپوږمۍ پټه وه ټکري کې
ځلیده له پخپل حسن وه مغروره
ګلوځانګه د روزګار له ناخوالیو
وه پرګا له ځنګیده لکه مخموره
د خوارۍ او غریبۍ سره په جنګ وه
سرګردانه لالهانده او تروره

سو رکو شونډو یې خندا نه پېژندله
د زړه‌تاو یې څه کم نه و له تنو ر ه
بې وسې او بې وزلۍ سختو پنجو کښې
هیلو گل یې ز مولیده‌نه وه سرو ر ه
د یوی سړ ی ډ وډۍ د پاره ښکلی
دهرچا وه منت با ر ه‌او سز د و ره
چاودی پښې، خیری گریوان، جړ یې او ربل وو
ډ ول سینگار نه نا خبره‌وه مجبو ر ه
نه میرمن وه‌نه بی بی او نه خانمه
نه سخ لو ځی و ه غریبه نه مستو ر ه
وه‌بی برخی دښه ژوندله عیش او نوشه
ژړیدله د غم لاس کښې وه محصو ر ه
خوار صورت یې په خولو کښې وو خړ وبه
له گرمی نه‌ښکا ریده لکه ر نځو ر ه
ښکلو ستر گو کې یې ډنډوی د زړه‌وینی
زخمی شوی وه‌غربت په تیره تو ره
په بارخو یې سهیره گرد دخواری پر وت وو
غمځپلی، سو دا یې وه‌لکه بو ر ه

بی احسا سو له نظر ه‌و ه پر یو تی
ز و ړلباس کښې‌وه بی در دو ته سنفو ره
قر با نی و ه د بی حسه جا معی دا
د دردمو روه کړاونو کښې مشهو ر ه

[redacted]

۱۳۵۳/۳/۱۲
جلال آباد



دغه لوی پراخ جهان چې
را ته تنګ لکه زندان وو
دغه ځمکه او اسمان چې
راته اور بلا د ځان وو

+ + +

داد تنګۍ ګرسیدان چې
ښکاریده پرون ویجاړه
دا یشیا د څنو ګل وو
وچه د ښته سپیره شاړه

+ + +

د سیستان ار ته سینه چې
وه ښکار ځای د بادارانو
عذاب نه تکلیفونه
وو نصیب د سر د ورانو

د بخدی ، یما با غچو کې
کړه کار غانو ا تهو نه
مایوسی په گورستان کې
خښید ل سو ار ما نو نه

\+ + ☼

کنشکا شمله وه ټیټه
د سوما پیاله نسکوره
د فرید د عظمت ستر گې
نا بینا وی او شبکوره

\+ + +

بد بختی او تر بگنو کې
را نه هیر ځان اوجهان وو
د تبعیض د دیو پـه لاس کې
سر وړل شوی ټول افغانوو

\+ + +

خو خو ر نګه ستړ نو
ظلم ، زور و ومو نیو ځپلی
د ځوانی په پسر لی کې
خز ان باد وو رژو لی

دیو رون سهار په ور انګو
را بیدا ره په نغمو شوم
وی پوره به موارزو شی
پوه په راز دپلو شو شوم

+ + +

دښه ژوندز یری یې را کړ
له سرور ډکه موسکا شوم
هیلو ګل په غوړ یدو شو
د امید ښکلی دنیا شوم

+ + +

[redacted]

+ + +

[redacted]
په ارام به موژوند ون شی
هزاره، تا جک، ازبک به
لاس اوزره دګران پښتون شی

د دی وران وطن سمون ته
د یوه بله د وحدت کړی
زلمو، پیغلو سره یو شی
وطن جوړ په خپل همت کړی ؟

+ + +

د پښتون، بلوڅ غوښتنه
فرض ده تا باندی افغانه!
لراو بر سره یو ځای شی
پښتون خونه کړی ودانه

+ + +

پولادی طاقت او زور شی
سخ کړی تور د دښمنانو
د غلیم په سر شی تندر
غیرتی پیغلو، ځوانانو

[redacted]



هری خواته‌خوشحالی د هټول خندیږي
زما زړه‌ستاد هجران په اورورتیږي
زلمی پیغلی له خوښی کړی اتنهو نه
زما سیخ باندی د اوښکورو د بهیږي
په‌کا مره‌کې سی دسترگوستاتصویردی
ستایا د ونه‌سی په زړه باندی وریږي

چې هرچا لره نظر کړم وایم ته یې
خدایږو تانه مې زړګی هیڅ نه صبرېږی
ستاخوږې سینې شرابو کړم بې خوده
له ډېر غمه خورم تیندک سر مې چورلیږي
ساز، سرو داوترانی د رنه قربان شه
خوږ آوازدې زما غوږ وته رسیږي
ستاله غمه دی لوګی د غه میلې شي
ستاد مینې درد سره کله سیالیږي
خاطرودې اوربل کړی په ګوګل مې
د مطرب په نغمو کله خوشحالیږي
په هرځای کښې د هرچا سره چې یمه
روح او خیال مې ستا په خوا کې مشغولیږي
ته مې ژوندیې، ته مې هیله او اسره یې
بې له تاسې اسیدګل کله غوړیږي
سوری ! ستایم تا به ستایم تاته پایم
بې له تا مې ارمانونه ټول رژیږي




۱۳۵۳/۴/۲۸

کابل حضوری چمن

پای

# دکتر امظهری نور لیکلی آثار

بر ښنا: دوړوداستانونو مجموعه ده چې په ۱۳۵۱ کال کې خپره شوې

سپوږمۍ: په نثر ناول دی چې په ۱۳۵۶ کال کې خپور شوی

دز پېروینې: د اشعارو مجموعه ده چې ستاسو په لاس کې ده.

ږوبلې: دوړوداستانونو مجموعه ده چې تراوسه لا نه ده خپره شوې

لتکۍ: دوړوداستانونو مجموعه ده چې تراوسه لا نه ده خپره شوې

کېږدۍ: دوړوداستانونو مجموعه ده چې تراوسه لا نه ده خپره شوې

ستوری: د ادبي ټوټو مجموعه ده چې تراوسه نه ده خپره شوې

ودر: د ادبي ټوټو مجموعه ده چې تراوسه نه ده خپره شوې

سپرغۍ: د شعرونو مجموعه ده چې تراوسه نه ده خپره شوې

داو ښکواميل: د شعرونو مجموعه ده چې تراوسه نه ده خپره شوې

شفق: په «دری ژبه» د ادبي ټوټو مجموعه ده چې تراوسه نه ده خپره شوې

آه: په «دری ژبه» د ادبي ټوټو مجموعه ده چې تراوسه نه ده خپره شوې

## د پښتنې ښځې موقف او برخه په پښتو

ادبیاتو کې: یو علمي او تحقیقاتي اثر دی چې تراوسه لا نه دی خپور شوی

د نړۍ مشهورې ښځې: یو تحقیقاتي اثر دی چې تراوسه نه دی خپور شوی

## دولتي مطبعه